# دناحق قتلونو او د کورنۍ جنګونو

په باره کښې د حضور پاک ﷺ ارشادونه

لیکونکے

مفتی محمد تقی عثمانی

ترجمه کوونکي

غلام محمد لائی وال
او
جاوید علی سواتي

مکتبه معارف القرآن کراچي ۱۴
(Quranic Studies Publishers)

# د ناحق قتلولو او د کورنۍ جنګونو

په باره کښې د حضور پاک ﷺ ارشادونه

لیکونکے

مُفتی محمد تقی عُثمانی

ترجمه کونکي

غلام محمد الائي وال

او

جاوید علی سواتي

مکتبہ معارف القرآن کراچی ۱۴
(Quranic Studies Publishers)

باہتمام : حضرت اشفاق قاسمی

طبع جدید : رمضان ۱۴۳۳ھ - اگست ۲۰۱۲ء

مطبع : احمد برادرز

ناشر : مکتبۂ معارف القرآن کراچی
(Quranic Studies Publishers)

فون : 92-21-35031565, 35123130

ای میل : info@quranicpublishers.com
mm.q@live.com



ملنے کے پتے

- مکتبہ دارالعلوم، کراچی
- ادارۃ المعارف، کراچی
- دارالاشاعت، کراچی
- بیت القرآن، کراچی
- بیت الکتب، کراچی
- مکتبۃ القرآن، کراچی
- ادارہ اسلامیات، کراچی/ لاہور
- بیت العلوم، لاہور
- مکتبہ رحمانیہ، لاہور
- مکتبہ سید احمد شہید، لاہور
- مکتبہ رشیدیہ، کوئٹہ
- کتب خانہ رشیدیہ، راولپنڈی
- مکتبہ اصلاح وتبلیغ، حیدرآباد
- ادارہ تالیفات اشرفیہ، ملتان

# فهرست

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله رب العالمین، والصلاة والسلام علی سید المرسلین وعلی اله وصحبه اجمعین، وبعد:

شیخ الاسلام حضرت اقدس مفتی تقی عثمانی صاحب مُدظلهم دَعالمِ اسلام یو نوموړی او شهرهٔ آفاق غړی دے۔ عالمِ عرب او عالمِ اسلام څه چه پوره جهان ئے دِ نوم، خدماتو، کارناموؤ او شخصیت نه خبر دے، دَ احیائے اسلام او دَ مذهبی افکار دَ تشکیل جدید حقله دَ شیخ الاسلام صاحب کردار او عمل د روڼ ستورے په شان ځلیګی، او خلقِ خدا ترے دَ اخپل اخپل ظرف په مقدار استفاده کوی۔ اللهم زد فزد۔

عالمی استعماری قوتونو په عالم اسلام کښے بالعموم او په افغانستان، پاکستان کښے بالخصوص دَ قتل وغارت ګری داسے بازار ګرم کړیدے چه الأمان الحفیظ۔ ورور د ورور أو مسلمان د مسلمان وینے بے دریغه تویه وی أو څقسمه د الله تعالیٰ نه ویر ترخه نه محسوسه وی، په دے صورتِ حال باندے د شیخ الاسلام غوندے بزرګانو فکرمند ګیدل مدزی خبره ده۔ دَ دغ غم و فکر د علاج د پاره حضرت دا مختصره رساله مرتب فرمایلی ده، ترجمه ئے حضرت مفتی زبیرحق نواز په اخپلو دوو شاګردانو باندے وکړه، ماڅه په تفصیل أو څه په اجمال سره دا ترجمه مطالعه کړیده، ماشاء الله مناسب ده أو امید دے چه الله تعالیٰ به ئے مفیده او نافعه هم او ګرزه وی۔ وما ذلك علی الله بعزیز۔

ولی خان المظفر یکے از خدام شیخ الاسلام صاحب مدظلهم

الحمدلله رب العالمين، والصلوة والسلام على سيدنا ومولانا محمد خاتم النبيين، وعلى اله واصحابه اجمعين، وعلى كل من تبعهم باحسان الى يوم الدين۔

امابعد: په قرآن پاك او سنت نبوی ﷺ كښى د انسانى ژوند څه څومره په تاكيد سره حرمت بيان شوے دے، زمونږ په زمانه كښې دومره بے حرمتي كيګي په معمولي معمولي خبرو باندې دَ يوسرې قتلوَل دومره عام شوي دي چې دَ انسان عزت دَ مَچ او ماشي نه هم بے حقيقته پاتى شوے دے، او افسوس دا دے چې په بعضِ وخت كښې صرف دَقوم پرستَى او دَ عزيزولۍ او دَ فرقه بازى دَ اختلافاتو په بنياد باندې هم سړے په دې غټ جرم كښې شامليګي چه هغه په خپل عام ژوند كښى ديندار ګنړلے كيږى۔

أو افسوس دادے چه په بعض وخت كښى دا غټ جرم ګوَل دينداري ګنړلے كيږى۔ ځكه په زړه كښى م خيال راغے چه كيديشى د قرآن پاك او سنت نبوى ﷺ هغه ارشادات دَ دى خلقو مبنګے نه وې يا هغے طرفته دَ دوى دِهان نه وې چې په كومه كښے دَ انسانى بدن حرمت په ډير ستاينه(وينا) سره بيان شوے دے۔ او يو انسان په ناحق قتلولو باندې هغه سخت وعيدونه فرمايلے شوے دے چې هغه په بل څه جرم باندې نه دى فرمايل شوې، دَ دې وجه نه زړه م دا اوغوښتل چې دَ قرآن پاك او سنت ارشادات په يوه رساله كښے بند كړلے شي، چې كه دَ يو مسلمان ايمان څومره هم كمزورے وى خو دَ قرآن پاك او دَ سنت نبوې ادب دهغه په زړه كښے خامخا وې، دَ دى وجے نه دا كيديشي كه دَ الله تعالىٰ يو بنده دا احكام ولولي او په خپل عمل باندې نظر راؤګرزوي، كه چرے دَ يو

مسلمان په زړه کښې هم دَ دې احکامو وارشاداتو دَ لوستلو په وجه دَ الله ویره پیدا شوه او دَ دی دَ وجی نه ئ دګناهونو نهٔ لرے والے پیدا شو نوانشاء الله دَ دی کړاؤ قیمت به په ځائ وی۔

(الف) په دی رساله کښې دَ ټولونه اول دَ انسان ناحق قتلولو دَ حرمت په باره کښې دَ قرآن کریم ارشادات نقل کړے شوې دې۔

(ب) دَ هغې نه ورستو په دې موضوع باندې څلویښت حدیثونه راټول کړے شوے دې۔ چی هغې ته دَ انسانی بدن دَ حرمت په موضوع باندی چهل حدیث ویئیل پکار دې۔

(ج) دَ دے نه ورستو دَ حضور اقدس ﷺ هغه ارشادات جمع کړے شوې دې چه په هغې کښې جناب رسول الله ﷺ دا هدایات ورکړی دی چی که چرته ظالم او بدکار حکمران مسلط شی، نو عام مسلمانانو له څه لاره اختیارول پکار دې۔

(د) دَ هغې نه ورستو دَ مسلمانانو په خپلو کښې دَ جنګ په صورت کښې چی مسلمانانوله کوم هدایات ورکړے شوی دی، هغه بیان کړے شوې دی،

الله تبارك وتعالٰی دِ دَ نافع جوړولو سره سره مونږ لره خپل او دَ خپل رسول ﷺ په تعلیماتو باندے پوره پوره دَ عمل کولو توفیق راکړې۔ آمین ثم آمین۔

محمد تقی عثمانی عفی عنه دارالعلوم کراچی

٤/شعبان المعظم ١٤٣٠هـ

ترجمه کونکی: غلام محمد الائی وال او جاوید علی سواتی

١١/ربیع الثانی ١٤٣١هـ

# په قرآن پاك او احاديث نبوی ﷺ کښې دانسانی ځان دَ حرمت احکام

دَ قرآن کریم او دَ رسول الله ﷺ دَ حدیثونو نه دا خبره دَ رڼرا ورځې په شان واضحه ده چې دَ اسلامی تعلیماتو مطابق دَ یو انسان ناحق قتلول دَ شرك نه ورستو دَ ټولونه غټ ګناه دے۔

څومره سختئ سزاګانے چې په ناحق قتل باندی په قرآن پاك او حدیث رسول کښے راغلی دی دومره په بل ګناه باندې نه دې راغلې،

په قرآن کریم کښې ارشاد دے:

"وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤمِنا مُتعَمِّدا فَجَزَاءُهٗ جَهَنَّمُ خَالِدا فِيهَا وَغَضِبَ اللهُ عَلَيهِ وَلَعَنَه وَاَعَدَّ لَه عَذَابا عَظِيما"۔ (النساء۹۲،۹۳)

ترجمه: چاچه یو مسلمان قصداً قتل کړو نو دَ هغه بدله جهنم دے په هغې کښے به همیشه وُسیږ ی او الله تعالٰی به په هغه په قهروی او لعنت به پرې کړی، او الله تعالٰی دَ هغه دَ پاره ډیر غټ عذاب تیار کړے دے۔

او وړیسے ارشاد دے:

"مِن اَجلِ ذَلِكَ كَتَبنَا عَلٰى بَنِى اِسرَائِيلَ اَنَّهٗ مَن قَتَلَ نَفسا بِغَيرِ نَفسٍ اَو فَسَادٍ فِى الَارضِ فَكَاَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيعا وَمَن اَحيَاهَا فَكَاَنَّمَا اَحيَاالنَّاسَ جَمِيعا وَلَقَد جَآئَتهُم رُسُلُنَا بِالبَيِّنَاتِ ثُمَّ اِنَّ كَثِيرا مِّنهُم بَعدَ ذَالِكَ فِى الَارضِ لَمُسرِفُونَ"۔ (المائده ۳۲)

ترجمه: د دی وجی نه مونږ په بنی اسرائیلو باندی دا خبره عرض

کړی وه چاچه یو انسان قتل کړو، حالانکه دا قتل دَ بل انسان په بدله کښې نه ؤو او نه په بدله دَ ورانی کښې وو۔ نو دا داسې دے لکه څنګه چې هغه تمام انسانان قتل کړې، او چاچې بچ کړه زندګی دَ یو کس لکه څنګه چې هغه ټول انسانان بچ کړل، او راوړی دی دوی ته پیغمبرانو زموږه ښې ښکاره، او بیا هم ډیر دَ دوی نه زیادتی کوی په زمکه کښې ورستو د دوی نه"۔

او مخکښې ارشاد دے:

"یٰٓا اَیُّهَا الَّذِینَ اٰمَنُوا لَا تَاْكُلُوٓا اَموَالَكُم بَینَكُم بِالبَاطِلِ اِلَّآ اَن تَكُونَ تِجَارَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُم وَلَا تَقتُلُوٓا اَنفُسَكُم اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُم رَحِیما وَمَن یَّفعَل ذٰلِكَ عُدوَانا وَّظُلما فَسَوفَ نُصلِیهِ نَارا وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَی اللّٰهِ یَسِیرا"۔ (النساء ۲۹، ۳۰)

"اے ایمان والو! تاسو دَ یو بل مالونه په نا حقه طریقې سره مه خورئ مګر دا چې وی په یو تجارت طریقه دَ بیعی دیو بل په خوښه ستاسو سره (نو جائز دے) او مه قتلوئ یو بل یقیناً الله تعالیٰ په تاسو باندې ډیر زیات مهربان دے، او چاچې اوکړو دَا کار په ظلم او زیادتی سره نو مونږ به هغه په اُور کښے داخل کړو او داخبره الله تعالیٰ ته ډیره اسانه ده۔

په دی آیت کریمه کښے چې څه فرمایلې دي یعنی "خپل ځان مه قتلوئ" دَ دې مطلب داهم دے چې خود کُشې مه کوَی او دا هم چې یو بل مه قتلوَی ، نوامام المفسرین علامه طبری رحمه الله د دې آیت په تفسیر کښے لیکی یعنی بذالك جل ثناؤه "وَلَاتَقتُلُوا اَنفُسَكُم" ولایقتل بعضكم

بعضا وانتم اهل ملة واحدة ودعوة واحدة ودین واحد۔ فجعل جل ثناؤه اهل الاسلام کلهم بعضهم من بعض۔ وجعل القاتل منهم قتیلا فی قتله ایاه منهم بمنزله قتله لنفسه اذا کان القاتل والمقتول اهل ید واحدة علی من خالف ملتهما"۔

(تفسیر الطبری ج ۵ ص ۳۵: دارالفکر)

ترجمه: خپل ځان مه قتلوَی دینه دَ الله تعالیٰ مراد دا دے چې یو بل مه قتلوَی، ځکه چې تاسو یو ملت او د یو دعوت او دَ یو دین واله یئ، په دغه شان الله تعالیٰ تمام عالم اسلام والوته دَ یوبل حصه ویلیدې چې یو سړے هغې مسلمانانو کښے یو کس قتل کړي نو هغه ته داسې وَیلیدې چې یو سړے هغې مسلمانانو کښے یو کس قتل کړي نو هغه ته داسې وَیلیدې لکه چې خپل ځان ئې قتل کړے وی، ځکه چې قتلکونکے او قتلشوے دواړه په اصل کښې دَ یوبل ډله کوی دَ خپل دین مخالف خلقو په مقابله کښې۔

او نور په قرآن پاک کښے ارشاد دے:

"وَلَا تَقتُلُوا النَّفسَ الَّتِی حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالحَقِّ وَمَن قُتِلَ مَظلُوما فَقَد جَعَلنَا لِوَلِیِّه سُلطٰنا فَلَا یُسرِف فِی القَتلِ اِنَّهٗ کَانَ مَنصُورا"۔

(الاسراء ۳۳)

او چې کوم ځان ته الله تعالیٰ حرمت عطا کړے دے نو هغه مه قتلوَی مګر په حقه سره، او چې کوم سړے قتل شو په زیادتی سره نو موتږ دهغه ولی ته (دَ قصاص) اختیار ورکړے دے، بس په هغه باندې لازم ده چې په قتل بهٔ زیادتی نه کوی۔

یقینا هغه دَ دې (خبرے) حق دار دے چې دَ هغه مدد وکړلے شې۔

او يو بل مقام كښې د الله تعالىٰ دَ نيك بنديانو ذكر كړې شوے دے او ارشاد دے:-

"وَالَّذِينَ لَايَدعُونَ مَعَ اللّٰه اِلٰها اٰخَرَ وَلَايَقتُلُونَ النَّفسَ الَّتِى حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالحَقِّ وَلَايَزنُونَ ج وَمَن يَّفعَل ذٰلِكَ يَلقَ اَثَاماOيُضٰعَف لَهُ العَذَابُ يَومَ القِيٰمَةِ وَيَخلُدُ فِيهِ مُهَانا"-

(الفرقان:٦٨،٦٩)

ترجمه: اوچې كوم سړے الله تعالىٰ سره دَ بل معبود عبادت نه كړي او چې كوم ځان الله تعالىٰ حرام كړے دے نوهغه ناحق نه قتلوي، او نه هغوى زنا كوي، او چې كوم كس دغه كار او كړي نوهغه به دَ خپل ګناه عذاب ته مخامخ كيږى، په ورځ دَ قيامت به دغه عذاب ده ته بيا بيا وركړے شى، او په عذاب كښې به هغه ذليله شي او هميشه د پاره به پكى وُسيږي په دى دواړه ايتونو كښې صرف دَ مسلمانانو قتلولو ممانعت نه دے راغلے بلكه دَ هر هاغه سړي د قتلولو ممانعت دے چې كوم ځان ته الله تعالىٰ حرمت نصيب كړے دے۔

نو بس په ديكښې هر هاغه غيرمسلمه هم داخل دے چې دَ هغه سره دَ مسلمانانو معاهده شوى وي دَ هغه مال او ځان په حفاظت باندى دے۔ دِينه علاوه الله تعالىٰ دَ بنى اسرائيلو بداعماليانو ذكر كړے دے او خاص طور باندې دا خبره چې هغوې به يو بل قتلول۔

ارشاد دے:

"وَاِذ اَخَذنَا مِيثَاقَكُم لَاتَسفِكُونَ دِمَآءَ كُم وَلَاتُخرِجُونَ اَنفُسَكُم مِّن دِيَارِكُم ثُمَّ اَقرَرتُم وَاَنتُم تَشهَدُونَO ثُمَّ اَنتُم هٰؤُلَآء

تَقتُلُونَ اَنفُسَكُم وَتُخرِجُونَ فَرِيقا مِّنكُم مِن دِيَارِهِم تَظٰهَرُونَ عَلَيهِم بِالاِثمِ وَالعُدوَانِ"۔ (البقره: ۸۴، ۸۵)

ترجمه: او (یاد کړی) چې کله مونږ تاسو سره پخه وعده کړی وه چې تاسو دَ یوبل وینې مه تویوَی، او خپل ځان د خپلو کورونو نه مه اُباسَی، او بیا تا سو اقرار کړے ؤو او تاسو دَ دی پخپله گواهان یئ، دِینه پس تاسو هغه خلق یئ چې خپل ځان قتلوَی، او دَ خپلونه بعض خلق دَ هغوئ دَ کورونونه باهر کوَی، او دَ هغوئ خلاف کوی او زیادتی کوَی، چې دَ هغوی دَ دښمنانو مدد کوَی۔

بیا الله تعالیٰ یوبل مقام کښے ده غټو گناهونو فهرست یعنی شمار خودلے دے، او ارشاد ئے فرمایلے دے:

"قُل تَعَالَوا اَتلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُم عَلَيكُم اَلَّا تُشرِكُوا بِهٖ شَيئا وَّبِالوَالِدَينِ اِحسَانا وَّلَاتَقتُلُوا اَولَادَكُم مِّن اِملَاقٍ نَحنُ نَرزُقُكُم وَاِيَّاهُم وَلَاتَقرَبُوا الفَوَاحِشَ مَاظَهَرَ مِنهَا وَمَا بَطَنَ ۚ وَلَاتَقتُلُوا النَّفسَ الَّتِى حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالحَقِّ ۚ ذَالِكُم وَصّٰكُم بِهٖ لَعَلَّكُم تَعقِلُونَ"۔(الانعام: ۱۵۱)

ترجمه: اُوا یه هغوئ (مشرکانو) ته چې راشَی څه تاسو ته اولوَلم چې ستاسو پروردگار په تاسو باندې کومې خبرې حرام کړې دي، هاغه خبرې دادي۔ چې الله تعالیٰ سره څوک مه شریکوَی او دَ مور پلار سره نیکي کوي او دَ غربت په وجه باندې خپل الواد (اولاد) مه قتلوَی، مونږ تاسو لره رزق درکوُو او هغوئ لره رزق هم ورکوُو، او دَ بے حیائې کارونو له نزدے هم مه ځې۔ هغه بے حیائی ښکاره وي یا

پته وي او چې کوم ځان لره الله تعالیٰ حرمت ور کړے دے نو هغه بے
قصوره مه قتلوَئ، اے خلقو دادی هاغه خبری چې دَ کومو تاکید الله
تعالیٰ کړے دے دپاره د دې چې تاسو هوښیار شئی۔ دَ قرآن کریم د
دې هدایتو مطابق حضور پاکﷺ هم د مسلمانانو یوبل سره قتل
قتال منع کړئو دَ پاره ډیر تاکید سره په سخت الفاظو کښے اُمّت
خبرداره کړے دے۔

# دَ قتل او قتال په باره کښے

# څلویښت حدیثونه

لاندی دَ نبی کریم ﷺ سلویښت حدیثونه نقل کیږي چې کومو
کښے حضور اقدس ﷺ یو کس په ناحق قتلولو باندې سخت سزاګانے
(وعیدونه) ارشاد فرېلی دی، او مسلمانانو تهٔ دَ سخت ګناه نه دَ بچکیدلو
نصیحت ئے کړے دے۔

(۱) حجة الوداع په موقعه باندې حضور پاك ﷺ چې کومه
عظیمه خطبه وَیَلِیوه نو هغه دَ اُمّت دَ پاره د همیشه دَ پاره وصیت نامه ده،
او په هغے کښے دَ ټولو نه زیات زور په دے خبره باندې دے چې مسلمانانو
دَ یوبل وینی مه تویوَی ارشادئے فرمایلے دے:

"فان دمائکم واموالکم" قال محمد واحسبه قال
"واعراضکم حرام علیکم کحرمة یومکم هذا فی بلدکم هذا
فی شهرکم هذا وستلقون ربکم فیسألکم عن اعمالکم فلا
ترجعن بعدی کفارا او ضلالا یضرب بعضکم رقاب بعض

ألا ليبلغ الشاهد الغائب فلعل بعض من يبلغه يكون أوعى له من بعض من سمعه" ثم قال "الاهل بلغت"۔ (صحيح البخاری، باب حجة الوداع حديث ٤٤٠٦ ط: دارالسلام، وصحيح المسلم باب القسامة، حديث ٤٣٥١ وهذا اللفظ له، ط: دارالقلم)

ترجمه: يعنی ستاسو وينه، ستاسو مال او (دَ محمد بن سيرين دَ روايت مطابق ستاسو عزتونه د يوبل دَپاره داسے حرام دی لکه ځنګه چې ستاسو د دی ورځی احترام په دی ښار کښې په دی مياشت کښې دے او په دی ښار (مکه) کښے او ستاسو په دی ورځے (غټ اختر) کښے احترام دے۔

تاسو به ټول خپل پروردګار سره ملاقات کوی بيابه هغه تاسونه تپوس کوی ستاسو دَ اعمالو په باره کښے۔ دی دَ پاره ځمانه بعد تاسو بيا داسی کافر يا ګمراه مه جوړيګی چې دَ يوبل مَرَی وهل شروع کړی داخبر هاغه خلقوته اُرسوئ چی کوم موجود نه وې، ځکه چې کيديشی کوم کس ته دا خبره اُرسيدليشې هغه دَ اصل اوريدنکے نه هم زيات يادونکی وی، او وَئے فرمايل چې دا خبره ياد ساتې ما پيغام اورسؤو (يعنی پيغام خداوندی)۔

په دې حديث کښے چې دا فرمايلې دی ځمانه ورستو تاسو بيا داسی ګمراه يا کافر نه شی چی دَ يوبل ځټونه وهی دَ دې مطلب خودا بيان کړے دے چې دا کار دَه کافرانو او ګمراهانو دے چې يوبل قتلوی، او بل (دويم) مطلبې دا دے چې يوبل کافر يا ګمراه مه ګنړی اومه قتلوَی"۔ (فتح الباری، کتاب الديات ج١٢ ص١٩٤)

(۲) او مخکښې د حضرت انسؓ نه روایت دے چې رسول الله ﷺ اوفرېل:

"اکبر الکبائر الاشراك بالله وقتل النفس وعقوق الوالدين وقول الزور" (صحیح البخاری، کتاب الدیات، باب قول الله تعالیٰ من احیاها حدیث نمبر ۶۸۷۱)

ترجمه: یعنی په ټولو ګناهونو کښې غټ ګناه دادے: ‌ذَ الله تعالیٰ سره شریك جوړول۔ او ذَ یو انسان قتلول، او مور، پلار نافرمانی کول، او دروغ ویل۔

(۳) ذَ حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه روایت دے چې ذَ حضور پاك ﷺ ارشاد دے:

"سباب المسلم فسوق وقتاله كفر"

(صحیح البخاری کتاب الادب حدیث ۶۰۴۴)

ترجمه: یعنی یو مسلمان ته کنزل کول ذَ ګناه کار دے او هغه ذَ قتلولو ذَ پاره جنګ کول کفر دے۔

(۴) او ذَ حضرت ابوهریرهؓ نه روایت دے چې ذَ حضور علیه السلام ارشاد دے:۔

"اجتنبوا السبع الموبقات۔ قیل: یا رسول الله!وماهن؟ قال: الشرك بالله، والسحر، وقتل النفس التی حرّم الله الا بالحق واكل مال الیتیم، واكل الربی، والتولی یوم الزحف، وقذف المحصنات الغافلات المؤمنات"۔

(صحیح المسلم کتاب الایمان حدیث ۲۷۱)

ترجمه: یعنی دَ اُوه(۷) تباه کونکو کارونونه ځان ساتئی۔ تپوس
ترینه اوشو چی یارسول الله هغه کوم کارونه دی هغه اُوه کارونه
دادی حضور علیه السلام او فرمایل: الله سره څوك شریك كول او
جادو کول او داسی یو کس ناحق قتلول چې دَ کوم سړی قتلول الله
تعالٰی حرام کړے دی او دَ یتیم مال خوړل او سود خوړل او دَ جهاد
نه تختیدل او په یوے پا‍ک زنانه باندی تهمت لګول۔(دَ انسان دَ
هلاکت کارونه دی)۔

(۵) او حضرت ابو بکرؓ روایت فرمائی چی حضور علیه السلام
ارشاد اوفرمائیلو:۔

"اذا التقی المسلمان بسیفیهما فالقاتل والمقتول فی النار" فقلت
یارسول الله هذا القاتل فما بال المقتول؟ قال: انه کان حریصا علی قتل
صاحبه"۔ (صحیح البخاری کتاب الایمان حدیث ۳۱)

ترجمه: یعنی چی کله دَوه مسلمانان خپلی تُورې راواخلی او مخامخ
شی نو قتلکونکے او قتل شوے دواړه به په جهنم کښے وي، حضرت
ابوبکر صدیقؓ فرمائی ماترینه تپوس او کړو چې دَ قاتل په خبره خوپوهه
شوم لیکن دا قتل شوے به ولی جهنم ته ځی؟ نو حضور ﷺ ارشاد
اوفرمایلو چې هغه ددے سړی دَ قتل اراده کړی وه۔

او په صحیح مسلم کښے دغه حدیث په دې الفاظو سره مروی دے:

"اذا المسلمان حمل احدهما علی اخیه السلا فهما علی
جرف جهنم فاِذا قتل احدهما صاحبه دخلاها جمیعاً"
(صحیح مسلم کتاب الفتن واشراط الساعة باب اذا تواجه المسلمان
بسیفیهما، حدیث ۷۲۱۲)

ترجمه: یعنی چې کله دَوه مسلمانان دَ یو بل خلاف توره راواخلی نو هغه دواړه به دَ جهنم په غاړه باندې وې بیاچی کله په دواړو کښې یو قتل شی نو دواړه به په جهنم کښې داخل کړے شی۔

(٦) او حضرت عبدالله بن عمرؓ روایت فرمائی چې حضور پاك ﷺ ارشاد فرمایلی دے:

"لن یزال المؤمن فی فسحه من دینه مالم یصب دما حراما"۔

(صحیح البخاری، کتاب الدیات، حدیث:٦٨٦٢)

ترجمه: یعنی یو مسلمان سړې ته دَ دین په معامله کښې د معافی گنجائش وې ترڅو پورې چې هغه په حرام طریقے سره وینه توی کړی۔ دَه دې حدیث مطلب دادے چې ناحق قتل کولو سره دَ معافی امکان بالکل ختم شې۔ (فتح الباری ج۱۲ ص۱۸۸)

(٧) دَ حضرت عبدالله بن عمرؓ نه دا حدیث روایت دے:

"من حمل علینا السلاح فلیس منا"۔

(صحیح البخاری، کتاب الدیات حدیث:٦٨٦٣)

ترجمه: یعنی چاچې په مونږ (مسلمانانو) باند اسلحه اوچته کړه نو هغه کس زمونږ نه نه دے یعنی ځما په امت کښې نه دے۔

پس عبدالله بن عمرؓ فرمائی "ان من ورطات المور التی لامخرج لمن اوقع نفسه فیها سفك الدم الحرام بغیر حله"

(صحیح البخارې، کتاب الدیات حدیث ٦٨٦٣)

ترجمه: یعنی کومو گرانو کارونو کښې چې ځان بندوان کړې او بیا ترینه ده وتلو څه طریقه نه وې په هغه گرانو کارونو کښې یو کار دادے چې یو کس په ناحقه قتل کړی۔

ذ دي مطلب دادے چې ناحق قتلولونه بعد ذ دی گناه معافی دَ دَه دپاره سخته گرانه ده ځکه چې ذ دې گناه تعلق ذ حقوق العباد سره دے یعنی بندگانو سره دے، او ذ بندگانو حقوق صرف دَ توبے سره نه معاف کیږي چې ترڅو پورې هغه بنده پخپله معاف نه کړی چې دَ چاحق ضائع شوی وی۔ او ذ قتل کیدونه بعد ده هغے د معاف کیدو څه لار نشته۔

(۸) او حضرت عبدالله بن مسعودؓ روایت دے فرمائی: چې دَ نبی کریم ﷺ ارشاد دے:

"لایحل دم امرئ مسلم یشهد ان لااله الا الله وانی رسول الله الا باحدی ثلاث: النفس بالنفس، والثیب الزانی، والمفارق لدینه التارك للجماعة"۔

(صحیح البخاری، کتاب الدیات، حدیث:۶۸۷۸)

ترجمه: یعنی چو کوم مسلمان دَ دی خبری گواهی ورکوی چې دَ الله تعالیٰ نه علاوه یوهم دَ عبادت لائق نشته دے اوځه ذ هغه رسول یم۔ دَ هغه مسلمان وینه دریئوو(۳) صورتونونه علاوه یو صورت کښے هم حلاله نه ده۔ (۱) یو داچې هغه څوك مړ کړے وې دَ هغی به بدله کښے قتل کړلے شی (۲) دویم داچې دَ واده کولونه بعدئے بدکارې کړې وې او (۳) دریم داچې خپل دین ئے پریخودے وې دَ مسلمانانو دَ ټولی نهٔ ئی جدائی اختیار کړې وې۔

(۹)او حضرت عبدالله بن عباسؓ روایت دے فرمائی: چې رسول الله ﷺ ارشاد دے:

"ابغض الناس الی الله ثلاثة: ملحد فی الحرم، ومبتغ فی

الاسلام سنة الجاهلية، ومطلب دم امرئ بغير حق ليهريق دمه"۔ (صحیح البخاری، کتاب الدیات، حدیث: ۶۸۸۲)

ترجمه: دری کسان دَ الله په نزد ډیر بد دی یو هغه سړے چې حرم کښے ئے بے دینی کړیوې دویم هغه کس چې کوم ناحق دَ بل کس دَ وینی تویولو د پاره دَ هغه طلبګار وي۔

(۱۰) او دَ حضرت جندبؓ بن عبداللهؓ نه روایت دے چې دَ حضور علیه السلام ارشاد مبارك دے:

"من استطاع ان لایحال بینه وبین الجنة بملأ كف من دم أهراقه فليفعل"۔

(صحیح البخاری، کتاب الاحکام، باب من شاق شق الله علیه۔ حدیث:۷۱۵۲)

ترجمه:چې کوم سړے دا کولے شی نو اودِکړی چې دَ هغه او دَ جنت په مینځ کښے داسی متے وینه نه وي چې کومه هغه دچا تویکړے وي۔

مطلب دَ حدیث دا دے که چرې یو کس دَ بل سړي وینه لګه غوندی هم ناحق تویکړې نو دَ هغه دَ جنت ته دَ تللو نه منع کولو سبب به جوړ شی، نو دَ انسان دَ پاره پکار دی چې کم از کم دَ جنت دَ تللو نه دَ منع کولو سبب نه دِ ځان بچ اوساتی۔

(۱۱) او دَ حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روایت دے چې حضور اقدسﷺ ارشاد مبارك دے:

"لزوال الدنيا اهون عندالله من قتل رجل مسلم"۔

(سنن النسائی، کتاب المحاربه، حدیث:۳۹۹۲، ط:دارالسلام)

ترجمه: دَ الله تعالی په نزد باندی دَ تمام دنیا ختمیدل غوره دي دَ یو مسلمان قتلولو نه"۔

(۱۲) او دَ حضرت عباده بن صامتؓ نه روایت دے چی حضور پاك ﷺ ارشاد فرمایلے دے:

"من قتل مؤمنا فاغتبط بقتله: لم یقبل الله منه صرفا ولاعدلا"

(سنن ابی داؤد، کتاب الفتن، حدیث ۴۲۷۰، ط: دارالسلام)

ترجمه: یعنی کوم سړے چی یو مسلمان قتل کړی او خوشاله وی دَ هغه په مرګ، نو الله تعالی به نه دَ هغه توبه قبلوي اونه به فدیه، او دَ دی یوه ترجمه داهم کیدیشی چي نه بهٔ نفلی عبادت قبلیږی او نه فرضی عبادت۔

(۱۳) او حضرت عبدالله بن عمرؓ فرمائی:

"رأیت رسول الله ﷺ یطوف بالکعبة ویقول ماطیبك واطیب ریحك مااعظمك واعظم حرمتك والذی نفس محمد بیده لحرمة المؤمن اعظم عندالله حرمة منك ماله ودمه وان تظن به الاخیرا"۔

(سنن ابن ماجه، ابواب الفتن حدیث ۳۹۳۲ ط: دارالسلام)

ترجمه: ما حضور ﷺ اولیدو چی هغه دَ کعبه شریفه طواف کولو او (کعبه تهٔ خطاب کولو) دائے وئیل چی ته څومره پاکه ئې او ستا خوشبو څومره ښکلے ده: ته څومره عظیمه ئې او ستا حرمت څومره غټ دے: دَ هغه قسم چې دَ چا په لاس کښے دَ محمد (ﷺ) ځان دے، یقینا الله پاك په نزد باندی دَ یومومن حرمت ستا دَ حرمت نه هم

زیات عظیم دے، ده هغه مال او ده هغه وینه او دَ دی خبرے هم چې
مونږ دَ هغه په باره کښې بدګمانی اوکړو۔ د دي حدیث په سند
کښے یو راوي ته بعض حضرات ضعیف ویلی دي لیکن ابن حبانؒ
دهغه په باره کښے ویلی دي چې معتبر دے۔ (مصباح الزجاجه ٤٤
١٦٤) لیکن دغه مضمون د حضرت عبدالله بن عباسؓ او حضرت
جابرؓ، او حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهم نه هم مختلف
سندو سره روایت دے۔ (شعب الایمان للبیهقی، حدیث٦٧٥٦، و
٥١٤ ٤معجم کبیر للطبرانی ١٥٩٦٦، معجم اوسط ٥٧١٩، مجمع
الزوئد ج١ص٢٥٥) چی دَ دے په باره کښے علماء فرمایلے دي چې
دا حدیث قابل قبول دے۔ (فیض القدیر ج٥ص٣٦٦)

(١٤) او د حضرت عباده بن صامتؓ نه روایت دے چې حضور پاك
ارشاد فرمایلے دے:

"کل ذنب عسی الله ان یغفره یوم القیامة الا من مات مشرکا
او قتل مومنا متعمدا" (رواه البزار ورجاله ثقات)۔ (مجمع
الزوائد، کتاب الفتن، باب حرمة دماء المسلمین، حدیث ١٢٢٩٨،ط:
دارالکتب العلمیه)

ترجمه: یعنی دَ هر ګناه په باره کښے دا امید کیدیشی چې په ورځے دَ
قیامت بهٔ الله پاك معاف کړي سوا دَ هغه سړی نه چې کوم دَ شرك
په حالت کښے مړ وي یا یو سړی یو مسلمان قصدا قتل کړے وي۔

(١٥) حضرت عبدالله بن عباسؓ روایت فرمائی چې یو موقع باندی
حضور اقدس ﷺ اوفرمایل:

"لو ان اهل السماء والارض اجتمعوا علی قتل مسلم لعذبهم الله بلا عدد ولا حساب"۔

(رواه الطبرانی ورجاله رجال الصحيح غير عطاء بن ابی مسلم وثقه ابن حبان وضعفه جماعة، مجمع الزوائد، كتاب الفتن، باب حرمة دماء المسلمين، حديث: ۱۲۲۳۰)

ترجمه:یعنی که چری تمام اسمان او زمکے والا مخلوق جمع شی دَ یو مسلمان قتلولو دَ پاره نو هغوی ټولو ته به الله تعالی بے شماره او بے حسابه عذاب ورکوی دَ قیامت په ورځ۔

(۱٦) د حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روایت دے چې نبی کریم ﷺ ارشاد فرمایلے دے:

"اذا مشى الرجل الى الرجل فقتله فالمقتول فی الجنة والقاتل فی النار" (رواه الطبرانی فی الاوسط ورجاله رجال الصحيح (مجمع الزوائد، كتاب الفتن، باب حرمة دماء المسلمين، حديث ۱۲۲۰٤)

ترجمه: یعنی چې کله یو کس دبل سړی خوا ته ورشي او قتل ئے کړي نو قتل شوے به په جنت کښے او قتل کونکے به په جهنم کښے وي۔

دا حدیث دَ امام ابو درداءؓ نه هم روایت دے، او دَ دی په شروع کښے حضرت عبدالرحمن بن سمرةؓ فرمائی: چی یو واري څه دَ مدینے په یوه لارے باندی دَ حضرت عبدالله بن عمرؓ لاس م نولے ؤو او روان وَمه چی داسی یو زائے ته اورسیدلو چی هلته دَ چا سر غورځند ؤو (یعنی چا قتل کړے ؤو او سرئے ورله غورځند کړے ؤو) نو حضرت

عبدالله بن عمرؓ چي اولیدو نو اوئې فرمايل دَ ده قاتل بدبخت دے او
بيائے دغه حديث او نوستلو۔

(۱۷) دَ حضرت عبدالله بن عباسؓ نه چاتپوس او کړلو چې دَ قاتل توبه قبليدېشی نوهغه تعجب اکړو او اوئے فرمايل: چې ته څه وائی، هغه سائل بيا دغه سوال او کړلو نو بيائے دغه ارشاد اوفرمايل او بيائے دَا حديث واؤرؤو:

"سمعت نبيكم ﷺ يقول: "يأتي المقتول متعلقا رأسه باحدىٰ يديه ملببا قاتله باليد الاخرىٰ تشخب اوداجه دما حتى ياتى به العرش فيقول المقتول لرب العالمين: هذا قتلنى فيقول الله للقاتل: تعست ويذهب به الى النار"۔

(رواه الطبرانى فى الاوسط ورجاله رجال الصحيح، مجمع الزوائد، كتاب الفتن، باب حرمة دماء المسلمين، ۱۲۳۰۶)

ترجمه: ما دَ نبی کريم ﷺ نه اوريدلی دي چې دائے او فرمايل چې کوم کس په دنيا کښې قتل شوے وي هغه به خپل سر په لاسونو کښې محوړند کړے راوړی، او خپل قاتل بهٔ انغښتے راوړی په دي حالت چې دَ هغه گوتو کښې به وينه ختهکيږی تردې پورې چې دَ عرش خواته به راشي او رب العالمين ته به وائی چې ده څه قتل کړے وُم نو الله تعالىٰ به قتلکونکے ته وائی چې غرق شے او جهنم ته به بوځلے شی۔

(۱۸) دحضرت ابوهريرهؓ نه روايت دے چې دَ حضور اقدسﷺ ارشاد مبارك دے:

"لا يقتل القاتل حين يقتل وهو مومن"

رواه البزار(مجمع الزوائد، كتاب الفتن، باب حرمة دماء المسلمين، حديث: ١٢٢٩٢)

ترجمه: قاتل چې قتل کوي په هغې وخت کښې هغه مومن نه وی۔

(١٩) او دَ حضرت عبدالله بن عباسؓ روایت دے چې دَ نبی پاك ﷺ ارشاد دے:

"من شرم فی دم حرام بشطر کلمة جاء یوم القیامة مکتوب بین عینیه: آیس من رحمة الله"

رواه الطبرانی وفيه عبدالله بن خراش ضعفه البخاری وجماعة ووثقه ابن حبان وقال اربعا اخطأ وبقيه رجاله ثقات، (مجمع الزوائد، كتاب الفتن، باب حرمة دماء المسلمين، ١٢٣١٥)

ترجمه: کوم سرے چې دَ یو کس وینه په حرام طریقه سره تویولو کښې یو لفظ اُوائي نو هغه به هم په قتل کښې برابر شریك وي، او هغه به دقیامت په ورځ داسې حالت کښې رازی چې دَ دواړو سترګو مینځ کښې به ئې لیکلی وي دَ الله تعالیٰ دَ رحمت نه مایوسه۔

(٢٠) حضرت مرثد بن عبداللهؓ نه روایت دے فرمائی چې دَ حضور پاك ﷺ نه تپوس اُشو چې یو سرے بل کس ته دَ قتل کولو حکم اُو کړی نو د هغه څه حکم دے؟ په دې باندې حضور ﷺ ارشاد اوفرئیلو:

"قسمت النار سبعين جزء ا فللآمر تسعة وستون وللقاتل جزء وحسبه"

رواه احمد ورجاله رجال الصحيح غير محمد بن اسحاق وهو ثقة ولكنه مدلس (مجمع الزوائد، كتاب الفتن، باب فيمن قتل مسلما حديث: ١٢٣٢)

ترجمه: دَ اُور اويا حصے کړے شوی دی دَ قتل حکم کولو والا دپاره يو کم اويا حصے دی او د قتل کولو واله دپاره به يوه حصه وي او هغه حصه به ورله پوره وي۔

(۲۱) او دَ حضرت ابو درداءؓ نه روايت دے چې دَ حضورپاکﷺ ارشاد دے:

"يؤتى بالقاتل والمقتول يوم القيامة فيقول: اى رب سل هذا فيم قتلنى فيقول: اى رب امرنى هذا۔ فيؤخذ بأيديهما جميعا فيقذفان فى النار"

رواه الطبرانى ورجاله كلهم ثقات۔ (مجمع الزوائد، كتاب الفتن، باب فيمن قتل مسلما، حديث:۱۲۳۲۲)

ترجمه: دَ قيامت په ورځې به قتل شوے او قتلکونکے دواړه راوستے کيږي نو قتل شوے به وائى چې اے رب ده نه تپوس وکړه چې دَه څه په څه خبرې باندې قتل کړے يم، قاتل (به يوبل سړی ته اشاره کړی) به وائى چې ماته ده حکم کړے ؤو، نو دواړه به دَ لاسونو نه اُنسلے شی او جهنم ته ورغزار کړلے شی۔

(۲۲) د حضرت عياض انصاریؓ نه روايت دے چې د حضور پاك ﷺ ارشاد دے:

"ان لا اله الا الله كلمة على الله كريمة لها عندالله مكان وهى كلمة من قالها صادقا ادخله الله بها الجنة ومن قالها كاذبا حقنت دمه واحرزت ماله ولقى الله غدا فحاسبه" رواه البزار ورجاله موثقون ان كان تابعيه عبدالرحمن بن عبدالله بن مسعود۔

(مجمع الزوائد، کتاب الایمان، باب فی مایحرم دم المرء وماله،
حدیث:۵۵)

ترجمه: دَ لااله الا الله کلمه په نزد دَ الله تعالیٰ ډیره زیاته عزت والا ده
او دَ هغې دَ الله تعالیٰ په نزد ډیره غټه درجه.ده، او دا داسې کلمه ده
که چرې یو کس دَ زړه په صدقه سره اوائی نو دَ دې په بدله کښې بهٔ
الله تعالیٰ هغه جنت کښې داخله وي، او که چرې په دروغو سره
اوائی نو په دنیا کښې بهٔ دا کلمه دهغه وینه دَ حرمت (یعنی په بل
کس به دَ هغه قتل حرام وی) والا جوړه کړي او دَ هغه مال به
محفوظه کړی۔ بیا چی کله د الله تعالیٰ خواته لاړشی نو هغه به
ترینه دو دروغو حساب اخلی۔

(۲۳) دَ حضرت ابودرداءؓ نه روایت دے چی دَ نبی کریمﷺ ارشاد دے:
"لایزال المؤمن معنقا صالحا مالم یُصب دما حراما، فاذا
اصاب دما حراما بلّح۔ (سنن ابی داود کتاب الفتن، حدیث:۴۲۷۰)

ترجمه: مسلمان نیک صالحه سپک سپک د جنت په لاری باندی
ترهاغی پورے روان وی چی ترڅو پورئ ځان ئې په حرامه وینه کښې
پلیت کړے نه وی، لیکن چی کله ځان پلیت کړي نوبیا دَ هغې لاری
نه منع کړلے شی۔

(۲۴) دَ حضرت انسؓ نه مروی دے چی نبی علیه السلام ارشاد فرپلے دے:
"ابی الله ان یحمل لقاتل المؤمن توبة۔ طب والضیاء فی فی
المختارة"۔

(کنزالعمال فی سنن الاقوال والافعال، کتاب القصاص حدیث: ۳۹۸۸۲،
ط:مؤسسة الرسالة)

ترجمه: الله تعالیٰ دَ مومن دَ قاتل دَ توبې نه منکر دے۔

(۲۵) د حضرت ابوهریرهؓ نه روایت دے چې حضور پاك ﷺ ارشاد مبارك دے:

"من اشار الی اخیه بحدیدة فان الملئکة تلعنه حتی یدعه و ان کان اخاه لابیه واُمه"۔

(صحیح مسلم، کتاب، البر الصلة، حدیث:٦٦٢٥)

ترجمه: چې کوم سړے چې خپل رورته په وُسپنې سره اشاره او کړی نو په هغه باندې فرښتې ترهغے پورې لعنت کوی چې ترڅو پورې هغه دا کار پریخو دے نه وې، خدائے دې کړی چې هغه سړے، دَ هغه خپل سکه رور ولېنوې۔

(۲٦) د حضرت ابوبکرؓ نه روایت دے چې حضور پاك ﷺ ارشاد فرمایلے دے:

"اذا اشهر المسلم علی اخیه سلاحا فلاتزال ملائکة الله تلعنه حتی یشیمه عنه البزار عن ابی بکرة"۔

(کنزالعمال فی سنن الاقوال والافعال، کتاب القصاص، حدیث: ۳۹۸۸٦) رواه البزار فی مسند ابی بکرةؓ، حدیث۳٦٤۱، ط: مکتبه العلوم والحکم، المدینة المنورة)

ترجمه: چې کله یو مسلمان په خپل رور باندې اصلحه راواړوی نوپه هغه باندې فرښتې لعنت ترهغے وخته پورے کوی چې ترڅو پورې دَ هغه نه هتیار لرے کړے نه وې"۔

(۲۷) د حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه روایت دے چې حضور

اقدس ﷺ ارشاد فرمایلے دے:

"اول ما یقضی بین الناس بالدماء"۔

(صحیح البخاری، کتاب الرقاق، حدیث:٦٥٣٣)

ترجمه: د قیامت په ورځ به دَ تولونه مخکښے فیصله دَ خلقو په مینځ کښې دَ وینے توئیولو په باره کښې کیږی۔

(۲۸) دَ حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روایت دے چی حضوراقدس ﷺ ارشاد فرمایلے دے:

"لجهنم سبعة ابواب باب منها لمن سل السیف علی امتی، اوقال: علی امة محمد"۔ (قال ابو عیسی): هذا حدیث غریب، لانعرفه الا من حدیث مالك بن مغول۔

(جامع الترمذي، کتاب التفسیر، حدیث:۳۱۲۳، ط: دارالسلام)

ترجمه: دَ جهنم اُوه دروازې دي په هغی کښے یوه دَ هغه خلقو دپاره ده چی څوك ځما په امتی باندې توره راوږوی۔

(۲۹) د حضرت عائشهؓ نه روایت دے چی دَ حضور نبی کریم ﷺ ارشاد دے:

"من اشار بحدیدة الی احد من المسلمین یرید قتله فقد وجب دمه"۔

(رواه الحاکم فی مستدرکه، کتاب قتال اهل البغی، وقال: هذا حدیث صحیح علی شرط الشیخین ولم یخرجاه۔ واقره الذهبی، حدیث:۲٦٦٩)

ترجمه: چی کوم سړے د یومسلمان طرفته د قتلوَلُو په ارادے سره اشاره اوکړي نو دهغه وینه توئیول واجب دي(یعنی دَ اشاره کولو والا)۔

(۳۰) د حضرت رقبه بن مالكؓ نه روايت دے چې دَ حضورﷺ ارشاد دے:

"ان الله ابىٰ على الذين قتل مؤمنا ثلاث مرات"۔

(سنن النسائى الكبرىٰ، كتاب السير، حديث:۸۵۹۳)

ترجمه: كوم كس چې يو مسلمان قتل كړې نو دَ هغه په باره كښې ماته الله تعالىٰ درې وارې انكار كړے دے (دمعاف كولونه)

(۳۱) د حضرت ابوموسىٰ اشعرىؓ نه روايت دے چې حضور اقدسﷺ ارشاد فرمايلے دے:

"اذا اصبح ابليس بث جنوده فيقول: من أضل اليوم مسلما البسته التاج فيجئ احدهم فيقول: لم ازل به حتى عق والده فقال: يوشك ان يبره ويجيئ احدهم۔۔۔ ويجئ احدهم فيقول لم ازل به حتى طلق امرأته فيقول: يوشك ان يتزوج ويجئ احدهم فيقول: لم ازل به حتى اشرك فيقول: انت انت ويجيئ احدهم فيقول: لم ازل به حتى قتل فيقول: انت انت ويلبسه التاج، هذا حديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه (وفى تعليق الذهبى فى التلخيص صحيح۔

(المستدرك على الصحيحين للحاكم، كتاب الحدود، حديث:۸۰۲۷)

ترجمه: يعنى ابليس خپل لښكر سحر اُليګى بيا وائى كه نن چا څوك مسلمان ګمراه كړے وى نوځه به ورته تاج په سر كړم۔ نو په هغوى كښې يو شيطان راشى او وائى چې ځه په پلانكى سړى پسې لګيدلے ومه تردې پورې چې هغه دخپل مور پلار نافرمانى اوكړله،

ابلیس وائی چی دا خوږه خبره نه ده زرده چي هغه به ورسره ښه سلوك شروع کړی۔بیا دویم راشي اووائی چی څه په پلانکی سړی پسی لګیدلیومه تردی پوری چی هغه خپلے ښځی ته طلاق ورکړو، په دی باندی ابلیس وائی چی هیڅ لرینده هغه به بل چاسره واده اوکړي، بیا یوبل شیطان راشي اووائی چی څه پلانکی سړی پسی لګیدلیومه تردي پوري چی هغه دَ الله سره شریك جوړ کړو، په دی باندي ابلیس وائی چی هان ته یې چی ښه کار دِ کړے دے او بیا یو بل راشي اووائی چی څه په پلانکی کس پسی لګیدلیومه تردی پوری چی هغه یوسړے قتل کړو، په دی باندی ابلیس وائی چی هان ته یې چی ښه کار دے کړے دے اوهغه ته تاج واچوئی دا حدیث امام ابونعیم په حلیة الاولیا کښے هم روایت کړے دے اوپه هغے کښے دا الفاظ دي چی ترڅومره پوري قاتل ابلیس ته خپلی کارنامی خبر ورکوي نو:

"فیصیح صیحة یجتمع الیه الجن فیقولون: یاسیدنا ماالذی فرحك فیقول: حدثنی فلان انه لم یزل برجل من بنی آدم یفتنه ویصده حتی قتل رجلا فدخل النار فیجیره ویکرمه کرامة ثم یکرم بها احدا من جنوده ثم یدعو بالتاج فیضعه علی رأسه ویستعمله علیهم۔

(رواه ابو نعیم فی الحلیة فی ترجمة فضیل بن عیاض)

ترجمه: ابلیس (دخوشالی نه) دومره چغه اووهی چی پیریان دَ هغه خواته جمع شي اووائی چي جناب والا ! تاته په کومی خبره دومره خوشالی شوي ده ؟ نو ابلیس وائی چی پلانکی شیطان ماته داوئیلی

دې چې څه دَ آدم په د څامنو کښې یوپسې لګیدلیومه تردې پورې چې هغه یو کس قتل کړو او بیا دهغه په سر باندې تاج کیګدې او دَ لښکر سردارئې جوړ کړې۔

(۳۲) د حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روایت دے چې حضورﷺ ارشاد دے:

"ان اعدی الناس علی الله من قتل فی الحرم او قتل غیر قاتله او قتل بذحول الجاهلیة۔ حم عن ابن عمرو۔

(رواه الامام احمد فی مسنده فی مسند عبدالله بن عمروؓ وعلق الشیخ الارنؤوط علیه فقال: اسناده حسن ولبعضه شواهد یصح بها، حدیث: ٦٦٨١، ط: مؤسسة الرسالة)

ترجمه: دَ الله تعالی سره دَ ټولونه زیاته سرکشی کولو والا هغه کس دے چې حرم کښې څوك قتل کړی یا یو داسې کس قتل کړی چې هغه دَ دَه دَ قتلولو اراده نوی کړی یا جهالت دَ دښمنانو په شان یو کس قتل کړی۔

(۳۳) د حضرت ابوهریرهؓ نه روایت دے چې حضورﷺ ارشاد دے:

"خمس لیس لهن کفارة الشرك بالله عزوجل وقتل النفس بغیر حق او نهب مومن او الفرار یوم الزحف او یمین صابرة یقتطع بها مالا بغیر حق"۔

(مسند احمد، فی مسندابی هریرهؓ حدیث: ۸۷۳۷)

ترجمه: پنځه څیزونه داسې دی چې دهغه څه کفاره نشته دے۔ الله سره شرك جوړل په ناحقه باندې یو کس قتلول، یا دَ یومومن دَ جهاد

په ورځے باندې واپس تښتيدل يا په دروغه قسم خوړل او دَ چا مال ناحق اغستل۔

(۳٤) دَ حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت دے چې دَ حضور اکرم ﷺ ارشاد دے:

"اَبشروا اَبشروا اَبشروا من صلى الصلوات الخمس واجتنب الكبائر السبع دخل من اى ابواب الجنة شاء: عقوق الوالدين والشرك بالله وقتل النفس وقذف المحصنات واكل مال اليتيم والفرار من الزحف واكل الربٰى"۔

الطبرانى عن ابن عمرو (جمع الجوامع او الجامع الكبير للسيوطى حرف الهمزة: رقم۲ ١٤، المكتبة الشاملة)

ترجمه: زيرے واوَرَئ، زيرے واوَرَئ، زيرے واوَرَئ !کوم سړے چې پنځه مونځونه اوکړي او دَ غټو ګناهونو نه ځان بچ کړي نو جنت ته چې دَ کومې دروازے نه غواړي نو داخل دې شي: دَ مور پلار نافرمانى، الله تعالىٰ سره څوك شريك جوړول او څوك قتلول او پاکو ښځو باندې تهمت لګول۔ او دَ جهاد نه تښتيدل او سُود خوړل (دا ټول غټے ګناهونه دي)۔

(۳٥) دَ عمرو بن الحمقؓ نه روايت دے چې دَ حضور اقدس ﷺ ارشاد دے:

"من امن رجلا على دمه فقتله فانا برئ من القاتل وان كان المقتول كافرا"۔

(رواه الطبرانى باسانيد كثيرة واحدها رجاله ثقات، مجمع الزوائد، كتاب الديات، باب فيمن امنه احد على دمه۔۱۰۷۱۲)

ترجمه: چې کوم سړے بل سړے له پناه ورکړی بیائے هم قتل کړی نو

څه دَ قاتل نه بری یم برابر ده که قتل شوے کافر ولی نه وی۔

دا حدیث امام حاکم رحمة الله علیه په دی الفاظو کښے روایت کړے دے:

"اذا اطمأن الرجل الی الرجل ثم قتله بعد مااطمأن الیه نصب

له یوم القیامة لواء غدر"۔

(اخرجه الحاکم، کتاب الحدود، رقم:۸۰٤۰) وقال: صحیح الاسناد،

ووافقه الذهبی)

ترجمه: چې یو سړے د بل کس دَ طرفنه مطمئن وی بیائے هم هغه قتل

کړی نو دَ داسی سړی د پاره په ورځے دَ قیامت دَ غداری جنډا به

ولګولے شي۔

(۳٦) دَ حضرت عائشةؓ نه روایت دے چې دَ نبی کریمﷺ دَ توری

په کسوره کښے دا لیکلی میلاوشوی ؤو:

"ان اشد الناس عتوّا رجل ضرب غیر ضاربه ورجل قتل غیر

قاتله ورجل تولی غیر اهل نعمته فمن فعل ذلك فقد کفر بالله

ورسوله لایقبل منه صرف ولاعدل"۔

(مستدرك الحاکم، کتاب الحدود۸۰۲٤، صحیح الاسناد ولم یخرجاه ،

ووافقه الذهبی)

ترجمه: په تمامو خلقو کښے دَ ټولونه زیات سرکش هغه سړے دے

چې کوم داسی یو کس اُوهی چې هغه دے نوی وهلے او هغه سړی

داسی کس قتل کړی چې هغه دَ ده دقتلولو اراده هم نوې کړے، او

هغه سړے چې کوم خپل نسبت داسې خاندان طرفته وکړې چې هغه خاندان دَ ده نوې او کوم سړے دغه کارونو اوکړې نو هغه دَ الله تعالٰی او دَ رسول ﷺ انکار اوکړلو، دَ هغه به نه فرض عبادت قبلیږی او نه نفل عبادت۔

(۳۷) دَ حضرت ابوهریرهؓ نه روایت دے چې دَ حضور اقدس ﷺ ارشاد فرمایلے دے:

"لاحرج الا فی قتل المسلم ثلاثا"۔

ترجمه: څه کار کښے هم دومره تنګی نشته (چې دَ هغے دَ معافی امید نوی) سوا دَ یو مسلمان قتلولو نه (چې دَ دی معافی ډیره ګرانه ده) او دا خبرهٔ دَری واری ارشاد فرمایلی شوی ده۔

دَ دې حدیث روایت کولو نه بعد د حضرت علی کرم الله وجهه ځوے محمد بن الحنیفه رحمة الله علیه فرمائی:

"لو ان الناس تابعونی الا رجل لم یسدد سلطانی الا به ما قتلته"۔

(مسند عبدالله بن المبارك ۲۵۶، دار النشر: مکتبة المعارف الریاض، الطبعة: الاولی تحقیق: صبحی البدری السامرائی)

ترجمه: که چرته ټول خلق ځما تابعداری اوکړی، صرف یو سړے داسې پاتې شی چې دهغه نه بغیر ځما حکومت نشی کیدلے نو ځه بهٔ بیاهم هغه نه قتلوم۔

(۳۸) دَ حضرت ابوبکر صدیقؓ نه روایت دے چې دَ نبی کریم ﷺ ارشاد دے:

"من صلى الصبح فهو فى ذمة الله فلاتخفروا الله فى عهده فمن قتله طلبه الله حتى يكبه فى النار على وجهه"۔

(رواه ابن ماجه، كتاب الفتن، باب المسلمون فى ذمة الله عزوجل، ٣٩٤٥، قال البوصيري: هذا اسناد رجاله ثقات الى انه منقطع۔ ورواه الطبرانى فى الكبير بسند صحيح، مصباح الزجاجة ج ٤ ص١٦٧ ط: دارالعربيه)

ترجمه: چې کوم سړے چې د سحر مونځ اُوکړی نو هغه د الله تعالىٰ په ذمه داری کښې راغے، دې دَ پاره دَ الله تعالىٰ دَ ذمه داری بے حرمتی مه کوی، چې څوك ته قتل کړی نو الله تعالىٰ بهٔ ستا تپوس کوی، تر دی پوری چې پړمخې به هغه اورته ارتاؤ کړے شي۔

(۳۹) دَ حضرت ابوسعيدؓ نه روايت دے چې نبی پاكﷺ ارشاد فرمايلے دے:

"يخرج عنق من النار يوم القيامة فتكلم بلسان طلق ذلق لها عينان تبصربهما ولها لسان تكلم به فتقول انى امرت بمن جعل مع الله الها آخر وبكل جبار عنيد وبمن قتل نفسا بغير نفس فتنطلق بهم قبل سائرالناس بخمسمائة عام وفى رواية فتنطوى عليهم فتقذفهم فى جهنم"۔

رواه البزار واللفظ له واحمد باختصار وابويعلى بنحوه والطبرانى فى الاوسط واحد اسنادى الطبرانى رجاله رجال الصحيح۔ (مجمع الزوائد، كتاب صفة اهل النار، حديث:١٨٦١٣،١٨٦١٤)

ترجمه: دَ قيامت په ورځے باندې به يو څټ(گردن)د جهنم نه راښکاره شي او هغه به يوے تورے ژبے سره خبرے کوی، دهغے به دوه

سترګې وې چې هغې سره به ګوري، او يوه به ژبه به ئې وي چې هغې سره به خبرې کوي او وائي به چې څه په هغه سړې باندې مقرر شوے يم چې کوم دَ الله نه علاوه معبود جوړ کړے وې، او هر هغه کس باندې چې کوم ظالم او جابر وې او هر هغه کس باندې چې يو سړے ئې مړ کړے وې بغير دَ يو مړګ په بدله کښې۔ بيا هغه ټول خلق به دَ نورو خلقو نه پنځه سوه کاله مخکښې راوان کړي، او ټول به جهنم کښې اوغورزوي۔

(٤٠) دحضرت صابح بن اعسرؓ نه روايت دے چې حضور اقدس ﷺ ارشاد فرمايلے دے:

"انا فرطكم على الحوض وانا مكاثربكم الامم فلا تقتلوا بعدى"۔

(اخرجه احمد ٤۔٣٥١،رقم:١٩١٠٩، وعبدالله بن مبارکؒ فى مسنده، كتاب من الفتن ج١ص٢٤٣،وابن حبان ١٤۔ ٣٥٧، رقم: ٦٤٤٦) وابن قانع(٢۔٣٢) والطبرانى(٨۔٧٩،رقم:٧٤١٥) والضياء (٨۔٥٤، رقم:٤٤) واشاراليه الترمذي فى اول كتابه، واخرجه ابن ماجه باسم الصنابحى)۔

ترجمه: ځه به په حوض کوثر باندې ستاسو امام جوړيګم زه به ځم، او ځه به ستاسو په ذريعه باندې دَ نورو امتونو په مقابله کښې خپل اُمّت په زيات تعداد کښې کتل غواړم۔ دې دَ پاره ځمانه بعد يوبل مه قتلوَی دغه حديث د حضرت ابن مسعودؓ نه هم روايت دے۔

دې نه مخکښې چې سلويښت حديثونه ذکر شوي دې په هغې کښې ډير حديثونه داسې دي چې صرف دَ مسلمانانو په باره کښې نه دي

بلکه دَ هر قسم انسان د ناحق قتلولو مذمت او په هغې باندې وعيدونه ارشاد فريلے شوي دي هاں هغه مسلمان وی يا غيرمسلم وي، خو حضور پاكﷺ په خاص طور باندې دَ هغه غيرمسلمو په قتل باندې سخت وعيد ارشاد فرمايلے دے چی کوم د مسلمانانو په ملك کښې د معاهدے په طور باندې په امن سره اوسی۔

نو د حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت دے چی حضورپاكﷺ ارشاد فرمايلے دے:

"من قتل معاهدا لم يرح رائحة الجنة، وان ريحها يوجد من مسيرة اربعين عاما"۔ (صحيح البخاری، كتاب الجزية، حديث٣١٦٦)

ترجمه: چی کوم سړے داسی يو کس قتل کړی چی هغه سره لوظ شوی وی، نوهغه سړے به د جنت خوشبو هم نه شی بويولے، حالانکه دَ جنت خوشبو دَ سلويښت کالو په فاصلے باندی محسوس کيديشی۔

نور د حضرت جندب بن عبداللهؓ نه روايت دے چی حضورپاك ﷺ ارشاد فرمايلے دے:

"من يخفر ذمتی كنت خصمه ومن خاصمته خصمته"۔

رواه الطبرانی فی الکبير والاوسط ورجاله ثقات، (مجمع الزوائد، كتاب الديات، باب فيمن قتل معاهدا۔١٠٧٥٤)

ترجمه: چی د کوم غيرمسلم حفاظت ذمه ماغستی ده، څوك دَ ده بے حرمتی کوي نو ځه به دهغه دښمن يمه، او ځه چی دَ چا دښمن شمه نوځه به هغه لره شکست ورکومه"۔

حضرت فاروق اعظمؓ چی کله زخمی شو نو دَ وفات کيدونه

مخکښې دَ ځان نه ورستو راتلونکی خلیفه تهٔ ډیر وصیتونه کړی ؤو په هغه وصیتونو کښې یَو دا دے:

"واوصیه بذمة الله وذمة رسول اللهﷺ ان یوفی لهم بعهدهم وان یقاتل من ورائهم ولایکلفوا الاطاقتهم"۔

(صحیح البخاری، کتاب فضائل اصحاب النبیﷺ حدیث ۳۷۰۰)

ترجمه: او ځه هغه ته وصیت کوم چی دکومو غیرمسلمو ذمه داري الله او دَ هغه رسول اغستي وې نو هغوې سره معاهده پوره کړې او دَ هغوې په دفاع کښې جنګ او کړی، اوپه هغوی باندی دهغوې دَ وس نه زیات بوج مه اچوَی)۔

# دَ خپل مینځی جنګونو نه دَ بچکیدلو هدایات

دَ قرآن پاك او دَ حدیث شریف دَ ذکر شوې ارشاداتو نه دا خبره بالکل ښکاره شوے ده چی د الله او رسولﷺ په نز دیو مسلمان ناحق مړ کول څومره غټ جرم دے، نوځکه د قرآن پاك اودسنت په هدایاتو کښې قدم په قدم دافکر په نظر راځی چی دَ مسلمانانو یوبل سره جنګونه د آخری وسه پورې خپل ځان وساتلے شی، او دخپل مینځ جنګونه عام طور باندې په هغه وخت کښے پیدا کیږی کله چی دخلقو بادشاه وخت نه شکایتونه پیدا شی، نو ځکه حضورپاكﷺ د ټولونه مخکښے دحکومت دَ ذمه دارانو په دې خبره باندې خودنه کړے ده چی هغوی دې دَ شریعت مطابق عدل او انصاف سره او د عوامو دَ خیر خواهی نه کاروانخلی۔

# حکمرانو ته خودنه

د حضرت معقل یسارؓ نه روایت نقل کړے شوے دے چې حضور پاكﷺ فرمایلي دي:

"مامن عبد یستر عیه الله رعیة فلم یحطها بنصحه الا لم یجد رائحة الجنة۔(صحیح البخاری، کتاب الاحکام، حدیث: ۷۱۵۰)

ترجمه: کوم یو کس چې الله تعالٰی دعامو خلقو محافظ/حاکم جوړ کړی او هغه دَ هغوی خیر خواهي نه کوی نو هغه به دَ جنت بوئے هم نه بویا وي۔

دغه شان ارشاد دے:

"مامن وال یلی رعیة من المسلمین فیموت وهو غاش لهم الا حرم الله علیه الجنة"۔(ایضاحدیث:۷۱۵۱)

ترجمه: کوم حاکم چې دَ عام مسلمانانو دَ معاملاتو ذمه دار جوړ شي، او په داسې حالت کښے مړشي چې دَ هغوی حق ضائع کوي نو الله به په هغه باندې جنت حرام کړي۔

او حضرت عمر بن خطابؓ فرمائي: "اني سمعت رسول الله یقول: ان الولاة یجاء بهم یوم القیامة فیقفون علی جسر جهنم، فمن کان مطواعا لله تناوله الله بیمینه حتی ینجیه، ومن کان عاصیا لله انحرف به الجسر الی وادمن نار یلتهب التهابا قال: فارسل عمر الی سلمان وابی ذرؓفقال: لابی ذرؓ: انت سمعت هذا الحدیث من رسول اللهﷺ قال: نعم والله۔ (المُصَنَّفُ لِابنِ ابی شَیبَة،کتاب ذکرالنار، حدیث۱۶۰۲۷ ج۱۳ ص۱۷۲، طادارة القآن)۔

ترجمه: ما دَ حضور ﷺ نه اوریدلی دی هغوی اوفرمایل چی حکمرانان به د قیامت په ورځ راوستلے شی، نو هغوی به د جهنم په پل باندے اودرَولے شی۔ وس که څوك په دوی کښے دالله تعالیٰ فرمان بردار وُو نو الله تعالیٰ به هغوی په خیٖ لاس کښے راواخلی او دَ جهنم نه به ورته نجات ورکړی او څوك چی دَ الله نافرمان وی په هغه باندې به پل واپس شی او دجهنم کندے ته بوځی چی کومے کښے اُور بلیګی"۔بیا حضرت عمرؓ حضرت سلمان او حضرت ابوزرؓ ته پیغام ولیګو او حضرت ابوذرؓ ته ئی اوفریل چی تاسو دَ حضور ﷺ نه دا خبره اوریدلی ده؟ نو حضرت ابوذرؓ اوفرمایل جی هان په الله قسم اوریدلی مِ ده او حضرت ابوهریرهؓ نه روایت دے چی حضور ﷺ ارشاد فرمایلے دے:"انما الامام جنة یقاتل من ورائه ویتقی به فان أمر بتقوی الله وعدل فان له بذلك اجرا وان امر بغیره فان علیه وزرا"۔

(سنن النسائی، کتاب البیعه، ذکر مایحب للامام ومایحب علیه، حدیث:۱ ۲۰ ٤)

ترجمه: حکمران یو ډهال وي دَ کومِ نه چی ورستو جنګونه کیږی، اوهغه باندی ځان بچ کولے کیږی، نو که چری هغه حاکم په تقوی او انصاف سره حکمرانی کوی نو دَ هغه دَپاره ډیر لوئے اجر دے او که څه په بله طریقه حکمرانی کوی نو دَ هغه دَپاره دګناه بوج دے"۔

# دَ بد کرداره حمکرانانو سره

# دسلوك كولو طريقه

كه چرى په تاسو باندې ظالم او بدكار حكمران مسلط شي نوپه داسې صورت كښے حضورﷺ دا هدايات فرمايلى دې چې دهغوى په غلطو كارونو كښے چې دهغوى مَرَستَه اونه كړى شي۔

او په امن اوښه طريقه سره هغوى په نيغه لاره دَ راستلو كوشش دِ او كړے شي۔ ځكه حضرت كعب بن عجرهؓ فرمائى:

"خرجَ علينا رسول الله ﷺ ونحن تسعة فقال: انه ستكون بعدى امراء من صدقهم بكذبهم واعانهم على ظلمهم فليس منى ولست منه وليس بوارد على الحوض ومن لم يصدقهم بكذبهم ولم يعنهم على ظلمهم فهو منى وانا منه وهو وارد على الحوض"۔

(سنن النسائى، كتاب البيعة، ذكر الوعيد لمن اعان اميرا على الظلم، حديث ٤٢١٢)

ترجمه: رسول الله ﷺ زمونږ خواته تشريف راوړلو او مونږه نهه(۹) كسان ؤو۔ هغوى اوفرمايل: چې ځمانه ورستو به داسې امير راشى، چې كوم سړے دَ هغه دَ دروغو تصديق كوى، او دهغه په ظلم كښے دهغه مرسته كوى ۔ نوهغه ځمانه نه دے او نه ځه د هغه نه يم۔ او هغه به ځما خواله حوض كوثر ته هم نشي راتلے، او كوم سړے چې دهغه په دروغو كښے دهغه تصديق نه كوى او دهغه په ظلم كښے دهغه

مرسته نه کوي نو هغه ځماته دے او ځه د هغه نه يم۔ او هغه به ځما خواله حوض کوثر ته راځي"۔ او د حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت دے چې د نبي کريمﷺ ارشاد مبارك دے:" مابعث الله من نبي ولااستخلف من خليفة الا كانت له بطانتان بطانة تامره بالمعروف وتحضه عليه وبطانة تامره بالشرو تحضه عليه فالمعصوم من عصم الله تعالىٰ"۔

(صحيح البخاري، كتاب الاحكام، باب بطانة الامام۷۱۹۸)

ترجمه: الله تعالىٰ چې ځومره پيغمبران راليګلي دي اوځومره خليفګان چې جوړ شوي دي نود هغوی ټولوبه دوه قسمه مشران وؤ۔ يو هغه مشر چې ځوك هغوی ته دَ نيکۍ تلقين کوي اوهغوی ته ترغيب ورکوي۔ اودويم هغه مشر چې کوم هغه ته د بدۀ تلقين ورکوی او هغه ته ترغيب ورکوی۔ او په حفاظت کښې هغه وی چې ځوك الله تعالىٰ په حفاظت کښې ساتي۔

او د حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت دے چې رسول اللهﷺ ارشاد اوفرمايلو:

"من حضر اماما فليقل خيرا او ليسكت"۔

رواه الطبراني في الاوسط وفيه صالح بن محمد بن زياد وثقه احمد وغيره وضعفه جماعة وبقية رجاله رجال الصحيح۔ (مجمع الزوائد، كتاب الخلافة، باب الكلام بالحق عندالائمة حديث:۹۱۶۷)

ترجمه: ځوك چې دَ يوحکمران په خوا کښې موجود وي، هغه لره پکار دی چې دخير خبری اوکړی يا دِ چپ شي۔

او دَ حضرت ابو سعیدخدریؓ نه روایت دے چی د حضور پاكﷺ ارشاد دے:

"ان من اعظم الجهاد کلمة عدل عند السلطان جائر" قال ابو عیسی وفی الباب عن ابی امامة وهذا حدیث حسن غریب من هذا الوجه"۔(سنن الترمذی، کتاب الفتن، حدیث:٢١٧٤)

ترجمه: لوئے جهاد داهم دے چی دَ ظالم بادشاه مخے ته دَ انصاف خبره او کړے شی۔ دا حدیث په مختلف الفاظو سره په ابو داؤد او ابن ماجه کښے هم مروي دے۔

او دَ حضرت عیاض بن غنمؓ نه روایت دے چی د حضورﷺ ارشاد مبارك دے:

"من اراد ان ینصح لذی سلطان بامر فلایبدله علانیة ولکن لیاخذ بیده فیخلو به فان قبل منه فذاك والا کان قد ادی الذی علیه"۔

رواه احمد (مجمع الزوائد، کتاب الخلافة، باب النصیحة للائمة وکیفیتها، حدیث:٩١٦١،٩١٦٢)

ترجمه: کوم سړے چی یو بادشاه ته نصیحت کول غواړی نو هغه له پکار دی چی هغه دخولو په مخکښے رسوا نه کړی، خوهغه دِ دَ لاس نه اونیسی او یوائی ځائے ته دی لاړشی، بیاکه هغه قبول کړو نوخیر دے او که نه کړی نو دَ هغه په ذمه چی څه حق وو، هغه خپل حق ادا کړو۔

حضرت عبدالله بن عباسؓ نه روایت دے چی دَ نبی کریمﷺ ارشاد دے:

"لاینبغی لامرء یقوم مقاما فیه مقال حق الاتکلم به فانه لن یقدم اجله ولایحرمه رزقا هوله"۔

(الثانی والخمسون من شعب الایمان للبیهقی، حدیث:۷۵۷۹ ط:دارالکتب العلمیة)

ترجمه: کوم سړے چې په یو داسې ځائے کښې وي چې هلته د حق خبرې دَ وینا موقع وی نو هغه له ضرور ویل پکار دی، د هغه دَ مرګ وخت مخکښې نشي راتلے او هغه نه چې دَ رزق کومه حصه ملاویګی نو هغه د هغې نه نشي محرومه کیدے۔

دَ حضرت ابو سعید خذریؓ نه روایت دے چې دَ حضور اقدس ﷺ ارشاد دے:

"لایحقرن احدکم نفسه۔قالوا: وکیف یحقر نفسه قال: ان یری امرا لله فیه مقالا فلایقول به فیلقی الله تبارك وتعالی وقد اضاع ذالك فیقول: مامنعك فیقول: خشیة الناس۔ فیقول: فایای کنت احق ان تخشی"۔

(رواه ابو داود الطیالسی بسند صحیح واللفظ له۔ وابو یعلی الموصلی وعنه ابن حبان فی صحیحه، ورواه احمد ابن منیع وعبدبن حمید وابن ماجه مختصرا۔ (اتحاف الخیرة المهرة بزوائد المسانید العشرة، کتاب الفتن، باب الامر بالمعروف والنهي عن المنکر، حدیث:۷۴۰۲ط دارالوطن، الریاض)

ترجمه: د چالره دا نه دي پکار (مناسب نه دی) چې هغه خپل ځان ذلیله کړی"۔

صحابؤو تپوس او کړو۔ څنګه(څه رنګه) ذلیل کړی؟ هغه اوفرمائیل

چي: هغه څه داسې خبره اووِيني چې په هغه باندے هغه ته د الله دَ
پاره څه ويل پکار ؤو بياهم هغه ونه وائي نو هغه به د الله تعالىٰ سره
په داسې حال کښې ملاويګي چې هغه به موقع ضائع کړې وي، الله
تعالىٰ به دَ هغه نه تپوس اوکړي چې ته (د حقې خبرے ته) چا منع
کړے وے؟ هغه به وائي: د خلقو يَرِي۔ الله تعالىٰ به ورته وائي چې:
څه دَ دے خبرے زيات حقدار وَم چې ته څمانه ويرے دلے وے"۔

بل طرفته حضورﷺ خلقوته دَ دے خبرے تاکيد فرېلے دے چې ترسو
پورې چې بادشاهان څه د ګناه حکم نوی کړے نو ترهغے پورې دَ هغوی
اطاعت کوَی او د خپل حق حاصلولو دپاره تُورې مه را اَخلَی، چې دهغے
په نتيجه باندې مسلمان دَ مسلمان وينه توے کړې او معاشره دَ کلی
جنګونو په مصيبت کښې ګرفتاره شي۔

خو د قرآن پاك او دَ حديث شريف مجموعی مزاج نه دا معلوميږي
چې دَ کلو جنګيدلو نه د بچ کيدو په خاطر دَ لوئے نه لوئے مصلحت هم
قربان کړے شوے دے، په دے وجه دَ حضور اقدسﷺ دا لاندينی حديثونه
په خاص طور باندې ده ليکلو او دَ لوستلو قابل دي او په پوره معاشره
کښې ده بيانولو قابل دي۔

(۱) حضرت عباده بن صامتؓ فرمائی:

"دعانا النبی ﷺ فبايعنا فقال فيما اخذ علينا ان بايعنا على
السمع والطاعة فی منشطنا ومكرهنا وعسرنا ويسرنا واثرة
علينا وان لا تنازع الامر اهله الا ان تروا كفرا بواحا عندكم من
الله فيه بُرهان"۔ (صحيح البخاری، كتاب الفتن، حديث: ٦٥٠٧)

ترجمه: نبی ﷺ مونږه راوغښتو او زمونږ نهٔ ئی بیعت واغستو مونږ نه چی کوم عهد واغستو، او په کومه خبره چی ئے بیعت واغستو هغه داچی که مونږ په ښه حالت کښے یُو یا په بدحالت کښے، په سَختَی کښے یو یا په راحت کښے یو، او که زمونږ حق ضائع کیږے په هر حالت کښے مونږ دَ امیر خبره آورُو او مَنُو، خو او د اهل امارت نه دَ امارت په معامله کښے څه مزاحمت به نه کویو۔ ترسو پورې چی تاسو ښکاره کفر اونه وینَی چی په هغے باندے ستاسو سره دَ الله تعالٰی دَ طرف نه مظبوط دلیل موجود وي۔

(۲)د حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه روایت دے چی د حضور پاك ﷺ ارشاد مبارك دے:

"انکم سترون بعدی اثرة واموراً تنکرونها" قالوا: فما تامرنا یارسول الله!قال: ادّوا الیهم حقهم وسلوا الله حقکم"۔

(صحیح البخاری، کتاب الفتن، حدیث:۷۰۵۲)

ترجمه: څما نه ورستو به تاسو ګورَی چی تاسو به نُورو لره ترجیح ورکوي او داسی خبرے به ګورَی چی هغه به تاسو ته ښه نه لګی صحابهٌ تپوس او کړلو: بیا زمونږ دپاره ستاسو څه حکم دے هغوی اوفرمایل: هغوی لره(حاکمانو لره) دهغوی حقوق ورکړی او خپل حقوق دَ الله تعالٰی نه غوارَی۔

(۳) دحضرت عبدالله بن عمرؓ نه روایت دے چی د حضورپاك ﷺ ارشاد مبارك دے:

"السمع والطاعة حق مالم یومر بمعصیة، فاذا امر بمعصیة فلاسمع ولاطاعة"۔

(صحيح البخاری، کتاب الجهاد، باب السمع والطاعة للامام حديث:۲۹۵۵)

ترجمه: (دَ امير) خبره منل برحق دی، ترسو پورې چې چاته دَ الله تعالیٰ د نافرمانی حکم نه ورکوي۔ هر کله چې د الله تعالیٰ دَ نافرمانی حکم اوکړی نو دَ هغې اوريدل هم نشته اوپه هغې عمل کول هم نشته۔

(٤) دَ حضرت عبدالله بن عباسؓ نه روايت دے چې د نبی کريمﷺ ارشاد دے:

"من کره من اميره شيئا فليصبر عليه فانه ليس احد من الناس خرج من السلطان شبرا فمات عليه الا مات ميتة جاهلية"۔

(صحيح البخاری، حديث:٧٠٥٤، وصحيح مسلم، کتاب الامارة، باب الامر بلزوم الجماعة، حديث:٤٧٥٤، وهذا اللفظ له)۔

ترجمه: کوم سړی ته چې دخپل امير خبره بنه اونه لګی، نوهغه له پکار ده چې په هغې باندې صبر اوکړی، ولے چې کوم سړے چې د امير د بادشاهت نه يوه ليشت پورې هم بهر اوتلو، او په دغه حالت کښے په هغه باندې مرګ راغے نو هغه به دَ جهالت په مرګ مړ کيږي۔

(٥) د حضرت ابوهريرهؓ نه روايت دے چې دَ حضورﷺ ارشاد دے:

"من خرج من الطاعة وفارق الجماعة ثم مات، مات ميتة جاهلية ومن قتل تحت راية عمية يغضب للعصبة ويقاتل للعصبة فليس من امتی ومن خرج من امتی علی امتی يضرب

برها وفاجرها لا يتعاش من مؤمنها ولايفى بذي عهدها فليس منى"۔

(صحیح مسلم، کتاب الامارة، باب الامر بلزوم الجماعة، حدیث:۴۷۵۱)

ترجمه: چې کوم سړے دَ امیر دَ فرمانبرداری نه اوتلو، او د مسلمانانو دَ ټولی نه جدا شو، بیا په هغه باندی مرګ راغے نو دَ جاهلت مرګ به پرے رازي، او کوم کس چې د ړندی جهنډے نه لاندې په دے حالت کښے مړ کړلے شو چې هغه دَ قوم پرستی په وجه په غُصه کښے وُو او دَ قوم پرستی دَ پاره جنګیدو، نو هغه ځما د امت نه نه دے۔ او کوم سړے چې ځما دَ امت نه اوزی او ځما دَ امت د خلقو مخالف جوړ شی چې دَ امت ښه او بدهرکس مړ کوی، نه څوك مومن پریږدی، او نه دَ غیرمسلمو سره کړے وعدے پوره کوی۔ نو دهغه ځماسره څه تعلق نشته۔

(٦) دَ حضرت عوف بن مالك اشجعیؓ نه روایت دے چې رسول ﷺ ارشاد فرمایلے دے:

"خیار ائمتکم الذین تحبونهم ویحبونکم ویصلون علیکم وتصلون علیهم، وشرار ائمتکم الذین تبغضونهم ویبغضونکم وتلعنونهم ویلعنونکم۔ قیل: یارسول الله افلاننا بذهم السیف؟ قال: لا، ما اقامو فیکم الصلوة لاما اقاموا فیکم الصلوة۔ واذا رئیتم من ولاتکم شیئا تکرهونه فاکرهوا عمله ولاتنزعوا یدا من طاعة"۔

(صحیح مسلم، کتاب الامارة، باب خیار الائمة وشرارهم حدیث:۴۷٦۷)

ترجمه: ستاسو په حکمرانانو کښې دَ ټولونه غوره هغه دے، دَ کوم سره چې تاسو محبت کوی، اوهغه ستاسو سره مينه کوی، او هغه تاسوته دعاګانِ کوی اوتاسو هغه ته دعاګانے کوی، اوستاسو په حکمرانانو کښې دټولونه بدتر هغه دے چې دَ هغه سره تاسو بغض ساتے، اوتاسو په هغه باندې لعنت کوې، اوهغه په تاسو باندی لعنت کوی۔ اصحابوؓ عرض اوکړو، چې اے دَ الله رسولﷺ !نو ولے په داسے موقع باندے مونږ دَ تُورې په ذريعه باندے هغه اوچت کړو اوولے نه غورزوو؟ (يعنی دهغه خلاف دَ اسلحے بغاوت اونکړو؟) هغویﷺ اوفرمايل:نه، هرکله چې هغه ستاسو په مينځ کښے مونځ قائم ساتی، اوکله چې تاسو دَ خپل بادشاه داسی خبری ګوری چې هغه تاسو ته نه وی ښوښه، دَ هغے عمل خراب ګنړی خو دَ هغه دَ اطاعت نه لاس مه اُباسی“۔

دَ دی حديث په بل روايت کښے دا الفاظ دې:

”الامن ولی عليه وال فراه ياتی شيئا من معصية الله فليكره مايأتی من معصية الله ولا ينزعن يدا من طاعة“۔

(صحيح مسلم، کتاب الامارة، حديث:٤٦٧٤)

ترجمه: بياهغه حاکم د الله تعالٰی دَ نافرمانی په څه بدعمل کولو اُوينی، توهغه چې دالله کومه نافرمانی کوی، هغه بده ګنړئی، خو دَهغه داطاعت نه هيڅرې هم لاس مه راکاګی۔

(۷) حضرت عرباضؓ فرمائی:

”وعظنا رسول الله ﷺ يوما بعد صلوة الغداة موعظة بليغة

ذرفت منها العیون ووجلت منها القلوب فقال رجل: ان هذه موعظة مودع فماذا تعهد الینا یارسول الله قال: اوصیکم بتقوی الله والسمع والطاعة وان عبد حبشی فانه من یعش منکم یر اختلافا کثیرا وایاکم ومحدثات الامور فانها ضلالة فمن ادرک ذالک منکم فعلیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین المهدیین عضوا علیها بالنواجذ"۔

قال ابوعیسی: هذا حدیث حسن صحیح (سنن الترمذی، ابواب العلم، باب ماجاء فی الاخذ بالسنة، حدیث:۲۶۷۶)

ترجمه: رسول اللهﷺ زمونږ مخے ته یوه ورځ دَ سحر دَ مونځ نه ورستو داسی یو اثر والا نصیحت او فرمائیلو چی دَ هغے دَ وجے نه زمونږ سترګے دَ اوښکوته ډکے شوې او زړونه مو اوویریدل۔ په دی باندی یوسړی سوال وکړو چی یارسول الله!دا خو څه داسی نصیحت ؤو لکه څنګه چی یوسړے رخصت شوے وی او نصیحت ئی کړے وی۔ وُس تاسو مونږ ته څه وصیت کَوی؟ حضورﷺ اوفرمائیل چی ځه تاسوته دَ الله تعالیٰ دَ ویریدو وصیت کوَم، او دَ خپل امیر دَ خبرے آوریدلو او مَنلو وصیت کَوَم، خدائے دِکړی چی هغه حبشی غلام ولی نوی، ولے چی تاسو کښے کوم یو ژوندے وُسی، هغه به ډیر زیات اختلافات ګورِی، اوپه دین کښے دَنیوو نوو خبرونه ځان بچکوئ څکه چی هغه ګمراهی ده۔ دی دپاره چی تاسو کښے په چا باندی داسی زمانه راشی نو هغه دی ځما او ځما دَ هدایت شوی دَ خلفاء راشدین سنت مضبوط وُنیسی، او هغه په غاښونو کښی ونسی۔

(۸) د حضرت معاذ بن جبلؓ نه روایت دے چی حضوراقدس ﷺ ارشاد فرمایلے دے:

"الا ان رحی الاسلام دائرة فدوروا مع الکتاب حیث دار الاان الکتاب والسلطان سیفترقان فلاتفارقوا الکتاب الا انه سیکون علیکم امراء یقضون لانفسهم مالا یقضون لکم، فاذا عصیتموهم قتلوکم وان اطعتموهم اضلوکم قالوا: یارسول الله کیف نصنع قال: کما صنع اصحاب عیسی بن مریم نشروا بالمناشیرو حملوا علی الخشب موت فی طاعة الله خیر من حیاة فی معصیة الله"۔

رواه الطبرانی ویزید بن مرثد لم یسمع من معاذ والوضین بن عطاء وثقه ابن حبان وغیره وبقیة رجاله ثقات(مجمع الزوائد، کتاب الخلافة، حدیث:۹۱۵۳)

ترجمه: یادساتی: دَ اسلام جرنده گرځیدلی ده وُس تاسو(دالله) دَ کتاب سره ځې، هغه څه زائے نه چی هم تاسو بوځی۔

یاد ساتی داسی وخت به راشی چی دَ(الله) کتاب او حکومت به جداشی، په دی موقعه کښې تاسو دکتاب نه مه جداکیګې۔ یادساتی په تاسو باندی به داسی امیر راشی چی هغه به دَ ځان دَ پاره فیصلے کوي نوهغه به ستاسو دَ پاره نکوي، که چری تاسو دهغه نافرمائی کوی نو هغه به تاسو قتل کړی او که دهغه اطاعت کوی نوهغه به تاسو گمراه کړي۔

اصحابوؓ عرض او کړو چی داسی وخت کښې به مونږه څه کوُو؟

حضور پاک ﷺ اوفرمایل هاغسی کوی چی څنګه دَ عیسٰی علیه السلام ملګرو کړی وه هغوی اړو سره سرے کړے شو، اولرګو باندې ژوړند کړلے شو۔ دَ الله تعالٰی په اطاعت کښے ځان قربانه وَل دهغه په نافرمانی کښے ژوند تیرولونه غوره دے۔

(۹) د حضرت انسؓ نه روایت دے چی حضور ﷺ ارشاد فرمایلے دے:

"اسموا واطیعوا وان استعمل علیکم عبد حبشی کان راسه زبیبة"۔

(صحیح البخاری، کتاب الاحکام، حدیث:۷۱۴۲)

ترجمه: (خپل دَ امیرخبره) مَنَی اواورَی خدائے دی کښی چی په تاسو باندې داسے یو حبشی غلام حاکم جوړشی چی دَ هغه سر د وَسکی (کشمش) په شان وې۔

(۱۰) دَ حضرت حذیفه بن یمانؓ نه روایت دے چی حضورپاک ﷺ ارشاد فرمایلے دے:

"یکون بعدی أئمة لایهتدون بهدای ولایستنون بسنتی، وسیقوم فیهم رجال قلوبهم قلوب الشیاطین فی جُثمان انس۔ قال: قلت کیف اصنع یارسول الله ان ادرکت ذالك؟ تسمع وتطیع للامیر وان ضرب ظهرك واخذ مالك فاسمع واطع"۔

(صحیح مسلم، کتاب الامارة، حدیث:۴۷۴۸)

ترجمه: ځمانه بعد به داسی حاکمان راځی چی ځما په هدایت باندې به نه چلیګی، اوځما په سنت باندی به عمل نه کوي، اوپه هغوي کښے به داسے خلق وی چی دَ هغوی په بدن کښے به د

شیطان زړه وي۔ حضرت حذیفه فرمائي چي ماپوښتنه اوکړه چي داسي زمانه په ما راشي نوځه به څه کوم؟ حضور ﷺ اوفرمايل: دامير خبره منه او آوره، خدائے دِ کړی چي ته په شا باندے اُوهلے شی، اوستا په مال باندي قبضه وشی نو بیاهم اطاعت کوه او آوره(یعنی بغاوت مه کوه)۔

(۱۱) د حضرت عرفجه رض نه روايت دے چي د حضور ﷺ ارشاد مبارك دے:

"انه ستكون هنات وهنات، فمن اراد ان يفرق امر هذه الامة، وهي جميع، فاضربوه بالسيف كائنا من كان"۔

(صحیح مسلم، کتاب الامارة، حدیث:۴۷۵۹)

ترجمه: يقين اوکړئی چي ډيری زياتی بدی بدی خبري به وي، نو څوك چي په دی امت کښے اختلاف واچوي، حالانکه چي هغوي متفق وي، نو هغه کس په توره باندي اُوهَی، خدائے دیکی چي هغه هر څوك وي۔

(۱۲) دَ حضرت ابوسعیدخذری رض نه روایت چي حضور اقدس ﷺ ارشاد فرمايلے دے:

"اذا بويع لخليفتين فاقتلوا الآخر منهما"۔

(صحیح مسلم، کتاب الامارة، حدیث:۴۷۶۲)

ترجمه:چي کله دَ دوو خليفگانو نه بیعت واغستلے شي نوپه دي دواړو کښے چي چا آخر کښے اغستے وی نو هغه قتل کړی۔

(۱۳) "سأل سلمة بن يزيد الجعفی رسول الله ﷺ فقال یانبی الله اَرَأیت ان قامت علینا اُمرء یسألونا حقهم ویمنعونا حقنا فما تامرنا فاعرض عنه ثم سأله فأعرض عنه ثم سأله فی الثانية او فی الثالثة فجذبه الأشعث بن قیس وقال اسمعوا واطیعوا فانما علیهم ما حملوا وعلیکم ما حملتم"۔

"وحدثنا ابوبکر بن أبی شَیبة حدثنا شبابه حدثنا شعبة عن سماك بهذا الاسناد مثله وقال "فجذبه الأشعث بن قیس فقال رسول الله ﷺ اسمعوا واطیعوا فانما علیهم ماحملوا وعلیکم ما حملتم"۔

(صحیح مسلم، کتاب الامارة، باب فی طاعة الامراء وان منعوا الحقوق: ٤٧٤٥، ٤٧٤٦)۔

ترجمه: حضرت وائل بن حجر حضرمیؓ فرمائی: چی سلمه بن یرید جعفیؓ سوال وکړو چی یانبی الله: ذرا داخو راته او وایه که چرې په مونږ باندې داسې حکمران جوړشي چی خپل حقونه دَ مونږ نه غواړې او زمونږه حق مونږ لره نه راکوي، نوستاسو مونږ دپاره څه حکم دے؟

نو حضورﷺ (د جواب ورکولو په ځاے) مخ واړؤ، هغه بیا سوال اوکړو، حضورﷺ بیا مخ واړؤ، بیا دویمه یا دریمه پیره سوال اوکړو، نو اشعت بن قیس هغه خپل طرفته راخکه، او حضورﷺ اوفرمایل: "آورَه اوفرمبردارې کوه، ځکه چی په هغه باندې کومه ذمه داری ده دَ هغې جواب ورکونکے هغه دے، اوپه تاسو باندې چی کومه ذمه داری ده دَ هغې جواب ورکونکے ته ئې۔

(۱٤) دَ حضرت ام سلمهؓ نه روایت دے چی د حضورپاکﷺ ارشاد دے:

"انه یستعمل علیکم امراء فتعرفون وتنکرون، فمن کره فقد بریٔ، ومن انکر فقد سلم، ولکن من رضی وتابع، قالوا: یارسول الله الا نقاتلهم؟ قال: لاماصلوا"۔

(صحیح مسلم، کتاب الامارة، حدیث:٤٧٦٤)

ترجمه: یقین اوکړی په تاسو باندې داسی امیران به حاکمان جوړ شی تاسو به دَ هغوی بعضے خبرے بنه گنړې او بعضے خبری به بدې گنړی۔ بیا چی کوم سړے بدې خبرې بدی او گنړی هغه به دَ گناه نه پاك وي، اوکوم سړے دبدو خبرونه انکار کوی نو هغه به سلامت وي هاں هغه سړے به گناه گار وی چی کوم سړے په دی بدو خبرو باندی راضی وي، او د هغوی تابعداری کوی۔

اصحابو تپوس اوکړو "یارسول الله مونږ د هغوی سره جنگ والے نه کؤو؟ حضورﷺ اوفرمایل نهٔ، څو پوری چی هغوی مونځ کوي۔

قاضی عیاضؒ دَ دی حدیث تشریح کوی اوفرمائی:

"معنی ماصلّوا: ماداموا علی الاسلام، فالصلوة اشاره الی ذٰلك"۔ (تکملة فتح الملهم ج۳ص۱۹۹)

ترجمه: داچی فرمایلی دي چی "ترڅو پوري هغوي مونځ کوی" دَ دی مطلب دا دے چی هغوی په اسلام باندې باقی وي، دَ مونځ نه دی طرفته اشاره ده۔ قاضی عیاضؒ دا تشریح دَ حضرت عباده بن صامتؓ په حدیث کښے کړے ده چی کومه مخکښے حدیث نمبر۱ کښی تیره شوې ده۔

# چې کله دَ جنګ په وخت کښې حق واضح وې

د مسلمانانو په خپلو کښې دَ جنګ په موقع که داخبره یقینی طور باندې متعینه شی چې ظالمان څوك دې او مظلومان څوك دې نو په هغې صورت کښې دالله تعالٰی واضح حکم دا دے:

"وان طائفتان من المومنین اقتتلوا فاصلحوا بینهما فان بغت احداهما علی الاخریٰ فقاتلوا التی تبغی حتی تفئ الی امر الله فان فاء ت فاصلحوا بینهما بالعدل واقسطوا ان الله یحب المقسطین انما المومنون اخوة فاصلحوا بین اخویکم واتقوا الله لعلکم ترحمون"۔ (سورة الحجرات:۹،۱۰)

ترجمه: اوکه د مسلمانانو په دوؤ ټولګو کښے جنګ شوروع شی نو دَ هغوی په خپل میځ کښې روغه اوکړی، بیاکه چرې هغوی کښے یوټولګے په بل باندے زیادتی اوکړی نو هغے ټولګی سره جنګ اوکړَی چې کوم زیادتی کوی، تردی پورې چې هغه د الله تعالٰی حکم طرفته واپس راشی بیاچې کله هغه واپس راشی نو هغوی په مینځ کښے په انصاف سره رُوغه اوکړَی اوهره معاملے کښے په انصاف سره کار کوَی، بے شکه الله تعالٰی دَ انصاف کونکو سره محبت کوې۔ حقیقت خودا دے چې ټول مسلمانان رونړه رونړه دې۔ دی دَ پاره خپلو دوؤ رونړو په مینځ کښے تعلقات بنه جوړ وَی۔ او د الله تعالٰی نه یریګی، دَ پاره دَ دې چې تاسو سره دَ رحم معامله اُوشی۔

په دی آیاتونو کښې اصل زور په دی ورکړے شوے دے چې کله مسلمانانو په مینځ کښې جنګ شوروع شی نو دَ هغوی په مینځ کښې هر ممکن کوشش سره روغه وکړلے شی۔ لیکن که چرې یوټولګے یقینی طور باندې زیادتے کوی نو دَ مظلوم مدد کولو دَ پاره زیاتی کولو واله سره دَ جنګیدلو هدایت کړے شوے دے، او مخکښې حدیث نمبر ۱۰،۱۱ کښې چې باغی سره دَ جنګیدلو حکم ورکړے شوے دے هغه دغه آیت کریمه په تعمیل کښې ورکړے شوے دے۔

## هغه فتنه چې په هغې کښې حق سرګند نه وې

نبی کریمﷺ په ډیرو حدیثونو کښې دا خبر ورکړے دے چې په راتلونکی زمانه کښې به داسی حالات پیښګی چې دَ مسلمانانو په مینځ کښې به خانه جنګی وې۔ او دا خبره به په یقینی طور باندے واضحه نشی کیدے چې کومه ډله په حقه ده او کومه ناحقه ده۔ ولی چې هره ډله به په خپل حق کښې ثبوت پیش کوی۔ داسی جنګ ته په دی حدیثونو کښې "فتنه" وئیلی شوې ده۔

په دی قسمه صورتحال کښې عامو مسلمانانو لره څه کول پکار دې۔ دَ دے په باره کښې حضوراقدسﷺ په تفصیل سره هدایات ورکړی دې او په دے ټولو حدیثو کښې په دی خبره باندې زور ورکړے شوے دے چې په داسی موقوع باندے عام مسلمانانو لره پکار دی چې د داسی قسمه جنګونونه بالکل جدا پاتے شی۔ یعنی دروغے کولو چې څومره کیدے شی کوشش دے وکړے شی۔ خو د یوئے فرقے ملګرتیا نه ده پکار۔ داسی قسمه احادیث دلته نقل کړے شوے دی۔

(۱) حضرت ابوهریرهؓ نه روایت دے چې حضورﷺ ارشاد دے:

"ستکون فتن القاعد فیها خیر من القائم، والقائم فیها خیر من الماشي، والماشي فیها خیر من الساعي، ومن تشرف لها تستشرفه، ومن وجدفیها ملجأً او معاذا فلیعذبه"۔

(صحیح للبخاري، کتاب الفتن، حدیث:۷۰۸۱وکتاب المناقب، حدیث:۳٦۰۱)

ترجمه: څه داسې فتنې به راشي چې په هغې کښې به هغه کس چې هغه ناست وي ولاړنه به غوره وي، او ولاړ کس به دَ روان کس نه غوره وي، او روان کس به دَ منډه وهلو واله سړے نه غوره وي او څوك چې دَ دے فتنے کتلو دپاره لاړ شي، هغه فتنه به هغه کس اچتکړي، دناست کس، ولاړ کس نه دَ غوره والي مطلب دا دے چې په داسې موقع باندے چې کوم سړے دَ دے فتنے نه څومره هم لرې وي۔ اوپه هغې کښې د هغه عملي حصه چې څومره کمه وي، هغه هومره به غوره وي، او کوم سړے چې تماشګیر جوړ شي او تماشے د پاره هلته تلل غواړي دهغه د پاره هم خطره ده چې هغه په دے فتنه کښے مبتلاء شي۔

(۲) دَ حضرت ابوهریرهؓ نه روایت دے چې حضورپاكﷺ افرمائیل:

"ستکون فتنه صماء بکماء عمیاء من اشرف لها استشرفت له واشراف اللسان فیها کوقوع السیف"۔

(سنن ابي داود، کتاب الفتن، حدیث:٤٢٦٤)

ترجمه: داسې یوه فتنه به راځي چې هغه به کڼره بې او چاړی او

روندہ یې۔ څوک چې هغه غور سره ګوری نو هغه بهٔ ځان سره راواخلی، او دے فتنے کښے ژبه رقول داسی وی لکه توره چې راواخلی۔

حضرت مولانا خلیل احمد صاحب سهارنپوریؒ دَ دے حدیث په شرح کښے فرمائی: چې دفتنے د کُنړ، چاړی او روندہ کیدو مطلب دادے چې کوم خلق په دی فتنے کښے مبتلاء وی (یعنی اَخته وی) هغوی ته به د حق او باطل تمیز نه وی۔ هغوی ته به د تکلیف رسولے شی۔ او هغه به دَ تَشَدُّد نشانه جوړیګی۔ او ژبه دَ کولاؤ پریخودو نه هاغه خلقو طرفته اشاره ده چې کوم خلق دَ دروغو خبرے ددے ځائے د هغے ځائے ته (د هغه ځائے نه دے ځائے ته) نقل کوی چې هغه دَ فتنے په اُور (آگ) نور زیات والے پیدا کوی۔ (بذل المجهود ج۵ص۹۷)

او دَ "روندے، کنړے" فتنے تفسیر علامه ابن تیمیهؒ فرمائی:

"وبدین الحق یقصد الخیر ویعمل به فلابد من علم بالحق وقصدله وقدرة علیه والفتنة تضاد ذلك فانها تمنع معرفة الحق او قصده او لقدرة علیه فیکون فیها من الشبهات مایلبس الحق بالباطل حتی لایمیز لکثیر من الناس او اکثرهم ویکون فیه من الاهواء والشهوات مایمنع قصد الحق وارادته ویکون فیها من ظهور قوة الشر مایضعف القدرة علی الخیر ولهذا ینکر الانسان قلبه عندالفتنة فیرد علی القلوب مایمنعها من معرفة الحق وقصده ولهذا یقال فتنة عمیاء صماء ویقال فتن کقطع اللیل المظلم ونحو ذلك من الالفاظ التی یتبین

ظهور الجهل فيها وخفاء العلم، فلهذا كان اهلها بمنزلة اهل الجاهلية"

(منها السنة للنبوية ج ٢ ص ٣٢)

ترجمه: دَ دين حق اصل مقصد غوره والے او په هغے عمل كول ، د دے وجے (د عمل دپاره) د حق علم هم ضروري دے، او دَ هغے اراده هم، او په هغے باندے قدرت لرل هم اوفتنه د دے ټولونه بيل شي دے۔ ولے چې هغه دَ حق نخه ده، د هغے ارادے او په هغے د قدرت لرلو دپاره منع كولو سبب جوړيگي، د دے وجے په فتنه كښے داسي شبهات جوړيږي۔ چې هغه حق د باطل سره ګډ وَډ كوي، د دے په نتيجه كښے ډيرو يا اكثرو ته د حق تميز نوي۔ په دي كښے خواهشات او جَذبات انسان ته دَ حق په لاره كښے ركاوټ جوړيگي۔په دے كښے شِركي قوتونه دومره غالب كيږي چې په خير باندي قدرت لرل كمزوري شي۔ د دے وجے د فتنے په مواقع باندي پخپله دَ انسان دَ زړه حالت بدل محسوس كيږي۔ او په زړونو باندے حالت پيدا شي چې د حق په معلومولو كښے منع كولو سبب جوړشي د دے وجے فتنے ته ړونده او كنړه ويلے شوے دي او دا فرمايلے شوي دي چې هغه دَ تورے شپے دَ ټكړو په شان دي۔ (څه رنګه چې په حديث نمبر٤ كښے راروان دي) داسي قسمه الفاظ دَ دے مقصد دَ پاره بيان كړے شو دي چې په فتنه كښے جهالت خوريگي او علم پټ پاتے كيږي، تر دي پورې چې اهل فتنه دَ اهل جهالت والو په شان شي۔

(٣) دَ حضرت ابوهريرةؓ نه روايت دے رسول الله ﷺ ارشاد

اوفرمایلو:

"والذی نفسی بیده لاتذهب الدنیا حتی یاتی علی الناس یوم لایدری القاتل فیم قتل ولاالمقتول فیم قتل"۔ فقیل کیف یکون ذالك قال: الهرج۔ القاتل والمقتول فی النار"۔

(صحیح مسلم، کتاب الفتن، واشراط الساعة، باب لاتقوم الساعة حتی یمر الرجل بقبر الرجل ٧٢٦٤)

ترجمه: قسم په هغه ذات چې دچاپه لاس کښې چې زما نفس دے، دنیا به د هغې پورے نه ختمیږی ترڅو پورې چې داسې ورځ رانشي چې په هغې کښې به قاتل ته دا پته نوی چې هغه ولی قتل کوی۔ او مقتول ته به دا پته نوی چې هغه ولی قتل کړلے شو؟ تپوس اوکړے شو چې دابه څنګه کیګی؟ هغوی اوفرمایل "وینه تویول" (خونریزی عام رواج به وی) قتلکونکے او قتلشوے دواړه به په جهنم کښې وی۔

(٤) دَ حضرت ابوموسیٰ اشعریؓ نه روایت دے چې نبی پاكﷺ ارشاد اوفرمایلو:

"ان بین یدی الساعة فتنا کقطع اللیل المظلم یصبح الرجل فیها مؤمنا ویمسی کافرا ویمسی مومنا ویصبح کافرا القاعد فیها خیر من القائم والماشی فیها خیر من الساعی فاکسروا قسیکم وقطعوا اوتارکم واضربوا سیوفکم بالحجارة فان دخل یعنی علی احد منکم فلیکن کخیر ابنی آدم"۔

(سنن ابی داؤد، کتاب الفتن باب فی النهی عن السعی فی الفتنه: ٤٢٥٩)

ترجمه: د قیامت نه مخکښې به داسې فتنې راشي چې هغه به دتورو

شپو دَ ټکړو په شان وی یو سړے به په هغه زمانه کښے د سحر په وخت کښے مومن وی، اوماښام به کافر وي، او ماښام به مومن وی او سحر په وخت کښے به کافر شی، په هغه زمانه چې څوك ناست وی هغه به دَ ولاړ سړی نه غوره وی، او څوك چې روان وی هغه به دَ منډے وهلو واله سړی نه بهتر وي۔ دِیدَپاره خپل کمانونه مات کړَی او خپل کمان لاشه کټهگی، او خپلی توري په گټو باندی اوهَی، بیا که په تاسو باندی څوك بَرشی نو هغه لره پکار ده چې دَ آدم علیه السلام د ځوی پشان شی چې دؤو کښے یو بهترؤو (یعنی هابیل چې دَ قابیل دَ لاس نه قتل خوئی خوښ کړل لیکن هغهٔ قتل نه کړو۔ په دے حدیث کښے چې فرمایلے شوی دی چې یو کس به په دے زمانه کښے دَ سحر په وخت کښے مسلمان وی او ماښام به کافر شی۔

د دے تشریح حضرت حسن بصریؒ په دے طریقه بیان کړے ده:

"یصبح الرجل محرما لدم اخیه وعرضه وماله، ویمسی مستحلاله ویمسی محرما لدم اخیه وعرضه وماله، ویصبح مستحلاله"۔ (سنن الترمذی، ابواب الفتن، باب ماجاء ستکون فتن کقطع اللیل المظلم:۲۱۹۸)

ترجمه: دَ دے مطلب دے چې د سحر په وخت خوبه مسلمان دَ خپل مسلمان رور وینه د هغه عزت او د هغه مال حرام گنړی، خو ماښام به هغه حلال گنړی او ماښام خوبه د هغه وینه عزت او مال حرام گنړی او د سحر په وخت کښے به حلال گنړی۔

(۵) دَ حضرت ابوبکرؓ نه روایت دے چی رسول اللهﷺ ارشاد اوفرمایلو:

" انها ستکون فتنة یکون المضطجع فیها خیرا من الجالس، والجالس خیرا من القائم، والقائم خیرا من الماشی والماشی خیرا من الساعی "۔قال: یارسول الله تأمرنی؟ قال:"من کانت له ابل فلیلحق بابله، ومن کانت له غنم فلیلحق بغنمه، ومن کانت له ارض فلیلحق بارضه"۔ قال: فمن لم یکن له شئ من ذلك قال:"فلیعمد الی سیفه فلیضرب بحده علی حرة ثم لینج مااستطاع النجاء"۔

(سنن ابی داود، کتاب الفتن باب فی النهی عن السعی فی الفتنة:٤٢٥٦)

ترجمه: یقین او کړه داسی فتنه راروانه ده چی په هغې کښې چی کوم سړے ملاس وی هغه به دَ ناست کس نه غوره وی او کوم کس چی ناست وی هغه به دَ ولاړ کس نه غوره وی او کوم کس چی ولاړ وی هغه به دَ روان نه بهتروی او کوم کس چی روان وې هغه به د منډے وهلو والے نه غوره وی۔

هغه اوفرمایل: یارسول الله(په داسی حالاتو کښې) څما دپاره ستاسو څه حکم دے؟ هغوی اوفرمایل: "د چا سره چی اُبښ وی نو هغه دے دخپلو اُښانو سره ځی، او د چا چه بیزی وی هغه دے خپلو بیزو سره ځی، او دَ چا سره چه زمکه وی نو هغه دے خپله زمکه باندې رواں شی" هغوی تپوس او کړو" د چا سره چی په دی کښې یوشے هم نه وی؟ هغوی اوفرمایل:"چی هغه ئره پکار ده چی هغه دِ خپلے تورے

خوانه لاړشی او ذ هغی لاشه (دهار) په یوه شګلنه زمکه باندی اووهی، بیا چی څومره لری تښتیدیشی ودی تښتی۔

(٦) ذَ حضرت ابوبکرهؓ دا برنی حدیث ذَ حضرت سعد بن ابی وقاصؓ نه هم مروی دی او ذَ هغی په آخره کښی حضرت سعدؓ فرمائی چی ماحضورﷺ ته عرض اوکړو چی که چرته څما کورته ذَنه لاړشی او څما ذَ قتلولو دپاره په مالاس پورته کړی(نو څه څه اوکړم) هغوی اوفرمایل:"چه ادم علیه السلام ده څوی (هابیل) په شان جوړ شه"

(سنن ابی داود حدیث:٤٢٥٧)

(٧) ذَ حضرت ابوبکرهؓ ذَ دی حدیث څه حصه حضرت وابصه بن معبد ذَ حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه هم روایت کړی ده اوپه هغی کښی ئی دَا اضافه هم کړی ده"قتلاها کلهم فی النار" یعنی په دی فتنی کښی (په چاچی حق واضح نه وی) چی کوم خلق قتل کړی شی هغوی ټول به دوزخ ته ځی۔

ذَ دی نه ورستو حضرت وابصهؓ فرمائی:

"قلت متی ذلك یاابن مسعود قال: تلك ایام الهرج حیث لایأمن الرجل جلیسه۔ قلت: فماتأمرنی ان ادرکنی ذلك الزمان قال: تکف لسانك ویدك وتکون حلسا من احلاس بیتك۔ فلما قتل عثمان طار قلبی مطاره فرکبت حتی اتیت دمشق فلقیت خریم بن فاتك فحدثته فحلف بالله الذی لااله الا هو لسمعه من رسول اللهﷺ کما حدثنیه ابن مسعود"۔

(سنن ابی داود، کتاب الفتن، حدیث:٤٢٥٨)

ترجمه: ما دَ حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه تپوس او کړو، چې داسې په کله کیږي؟ هغوی اوفرمایل چې دَ قتل او دَ وینې توېولو په زمانه کښې، کله چې یو سړے هم دَ خپل خوا کښې ناست کس نه محفوظ نه وی" ما اوویل: "چې که هغه ځما مخے ته راشی نو ځما دَ پاره ستاسو څه حکم دے؟ حضرت عبدالله بن مسعودؓ اوفرمایل: ته خپله ژبه او لاس بند ساته او دَ خپل کور ټاټ جوړ شه" بیا چې کله حضرت عثمانؓ شهید شو نو ځما زړه راوچت شو، او ځه په سورلئ دمشق ته لاړم، هلته ځما ملاقات دَ حضرت خریم بن فاتکؓ سره اوشو، نو ما دا حدیث هغوی ته واؤرَوو، نو هغوی د الله قسم او کړو چې د هغه سوا څوك د عبادت لائق نشته او هغه اویل چې هغه دا حدیث دَ رسول الله ﷺ نه داسې اوریدلے دے کوم چې حضرت عبدالله بن مسعودؓ ماته اورولے وو۔

(۸) په دی ورمبی حدیث کښې چې حضرت عبدالله بن مسعودؓ حضرت وابصهؓ ته چې کومه مشوره ورکړه" چې دَ خپل کور ټاټ جوړ شه" دا پخپله دَ حضورﷺ نه حضرت ابوموسیٰ اشعریؓ روایت کړے دے، د هغے الفاظ دادی چې حضورپاكﷺ ارشاد فرمایلے دے:

"ان بین ایدیکم فتنا کقطع اللیل المظلم یصبح الرجل فیها مومن ویمسی کافرا ویمسی مومنا ویصبح کافرا القاعد فیها خیر من القائم فیها والقائم خیر من الماشی والماشی فیها خیر من الساعی۔ قالوا فما تامرنا قال: کونو احلاس بیوتکم"۔ (سنن ابی داود، کتاب الفتن حدیث:٤٢٦٢)

ترجمه: ستاسو مخے ته فتنے راووانے دی چی هغه دَ تُورے شپے دَ ټکړو پشان به وی، په هغے کښے به یو سړے د سحر په وخت کښے مومن سی، او ماښام کښے به کافر شی، او ماښام به مومن او سحر به کافر شی، په هغے کښے به ناست کس دَ ولاړ نه غوره وی، او ولاړ کس به دَ روان کس نه غوره وی، او روان کس به د منډے وهلو واله کس نه غوره وی، اصحابوؓ تپوس او کړو چی زمونږ دپاره ستاسو څه حکم دے؟ هغوی او فرمایل: "تاسو د خپلو کورونو ټاټ جوړ شی۔

(۹) حضرت ابو ذرغفاریؓ فرمائی:

"قال: لی رسول الله ﷺ "یا اباذر" قلت لبیك یارسول الله ﷺ وسعدیك۔ فذکر الحدیث قال: فیه "کیف انت اذا اصاب الناس موت یکون البیت فیه بالوصیف" قلت: الله ورسوله اعلم او قال: ماخار الله لی ورسوله۔ قال: "علیك بالصبر" او قال: "تصبر"۔ ثم قال لی: "یااباذر"۔ قلت: لبیك وسعدیك قال: "کیف انت اذا رایت احجار الزیت قد غرقت بالدم"۔ قلت ماخار الله لی ورسوله۔ "علیك بمن انت منه"۔ قلت: یارسول الله أفلا اخذ سیفی واضعه علیٰ عاتقی قال: شارکت القوم فما تامرنی قال: "تلزم بیتك"۔ قلت فان دخل علی بیتی قال: "فان خشیت ان یبهرك شعاع السیف فالق ثوبك علی وجهك یبوء باثمك واثمه"۔ قال: ابوداود لم یذکر المشعث فی هذا الحدیث غیر حماد بن زید"۔

(سنن ابی داود، کتاب الفتن، باب فی النهی عن السعی فی الفتنة، حدیث:۴۲۶۱)

ترجمه: ماته رسول اللهﷺ اوفرمایل: اے ابوذره "مااُویل "څه حاضر یم یارسول اللهﷺ" بیائے څه خبرے ارشاد اوفرمایلے، هغے ئے داهم اوفرمایل: "هغه وخت به ستاسو څه حال وی کله چی په خلقو کښے مرګ داسی خورشی چی یو قبر به هم دیو غلام په نرخ میلاویګي" ماعرض اوکړو چی د الله رسول ډیر پوهیګی، یا دائے اویل چی د الله او دَ هغه رسول (په دیکښے) ځما د پاره څه خوښه وي۔ هغوی ارشاد اوفرمایلو:"په صبر قائم شه" بیا هغوی ماته دوباره اواز او کړو اے ابوذر ماعرض او کړو "څه حاضر یم" اے د الله رسوله هغوی اوفرمایل هغه وخت به ستاسو څه حال وي کله چی دَ احجار الزیت علاقه په وینو کښے ډوبه شی" ماعرض او کړو "څه چی الله او د هغه رسول ځما د پاره خوښ کړی"۔ هغوی اوفرمایل "دَ کوم خاندان سره چی ستا تعلق وی بس هغے سره وُسه" ماعرض او کړو: اے دَ الله رسوله ولے څه داسی ونه کړم چی توره راواخلم او هغه په خپله اوګه باندے کیدم"؟ هغوی اوفرمایل بیابه ته هم (په دے فتنه کښے) دَ هغوی سره شریك شی"۔ "ماعرض او کړو"۔ بیا ځما دپاره څه حکم دے؟ وُئے فرمایل، خپل په کور کښے وُسه"۔ ماعرض او کړو: که چرته څوك ځما کورته دَننَه لاړشی؟ ارشاد اوفرمایل:"که چرته تاته دا یَره وي چی دَ تورې پړق به برداشت نه کړم نو پخپل مخ باندے خپله کپړا واچوه هغه به دَ خپل ګناه دَ بوجهـ سره هم واپس کړے شی او ستا دَ ګناه دَ بوجهـ سره به هم۔

(۱۰) دَ حضرت ابوسعید خدریؓ نه روایت دے چی حضورﷺ

ارشاد فرمایلے دے:

"یوشك ان یکون خیر مال المسلم غنم یتبع بها شعف الجبال ومواقع القطر یفر بدینه من الفتن"۔

(صحیح البخاری، کتاب الایمان، باب من الدین الفرار من الفتن، حدیث:۱۹)

ترجمه: هغه وخت نزدې راتلونکے دے چې دَ یو مسلمان غوره مال بیزې به وی چې دَ هغے سره به روان سی هغه به د فتنونه دَ غرونو سرته زغلی او دَ بارانونو ځائے ته به لاړشی۔

(۱۱) دَ حضرت ابو موسیٰ اشعریؓ نه روایت دے چې نبی کریمﷺ د فتنے ذکر کولو نو دا ارشادئے اوفرمایلو:

"کسروا فیها قسیکم وقطعوا فیها او تارکم والزموا فیها اجواف بیوتکم و کونوا کابن آدم"۔

قال: ابوعیسیٰ هذا حدیث حسن غریب صحیح۔(سنن الترمذی، ابواب الفتن، باب ماجاء فی اتخاذ سیف من خشب فی الفتنة، حدیث:۲۲۰۴)

ترجمه: په داسی فتنو کښے خپل کمانونه مات کړی او خپل د کمان دسیۍ کټ کړی، او د خپل کورونو په شا باندی کلك وسی، او آدم علیه السلام ځوئے (هابیل په شان شَی)۔

(۱۲) حضرت معقل بن یسارؓ نه روایت دے چې دَ حضورعلیه السلام ارشاد دے:

"العبادة فی الهرج کهجرة الی"۔

(صحیح مسلم، کتاب الفتن، باب فضل العبادة فی الهرج، حدیث:۷۳۶۰)

ترجمه:په کومه زمانه کښے چې دَ قتل بازار گرم وې، په هغے زمانه

کښې د عبادت (کېنې د مشغول کېدو) ثواب داسې دے څنګه چې زما خواله دَ راتلو د پاره د هجرت ثواب دے۔

(۱۳) دَ حضرت عبدالله بن عمرو بن عاصؓ نه روايت دے چې د حضورپاکﷺ ارشاد دے:

"کيف بکم وبزمان يوشك ان ياتي يغربل الناس فيه غربلة وتبقى حثالة من الناس قد مرجت عهودهم واماناتهم فاختفوا وكانوا هكذا وشبك بين اصابعه قالوا كيف بنا يارسول الله اذا كان ذالك قال تأخذون بما تعرفون وتدعون ماتنكرون۔ وتقبلون على خاصكم۔ وتذرون امر عوامكم"۔

(سنن ابن ماجه، كتاب الفتن، باب التثبت في الفتنة، حديث:۳۹۵۷)

ترجمه: هغه امانه کښې به ستاسو څه حال وی نزدې ده چه راشی، په هغې زمانه کښې به ټول خلق چانړ کړے شی، او خلقو کښې به داسې خلق پاتے شی لکه بوس، هغوی به نه وعده پورا کوی اونه به امانتونو کښې امانت دار وي(يعنې خيانت به کوي) او هغوی به اختلاف اوکړی او داسے به تس نس شی، او دائے اوئيل هغوی خپلې ګُتې په يوبل کښې واچولې صحابهؓ عرض اوکړو، اے د الله رسولهﷺ: چې داسې وُشی نو مونږه به څه کوؤ؟ وئے فرمايل: څه چې ده نيکی خبره ګورئے په هغے عمل کوی۔ او څه بدې ګوری، نو هغه پريګدی، او خاص خپل(اصلاح) طرفته متوجه شَی، او خپل عوام (په خپل حال) پريګدَی۔

(۱٤)دَحضرت محمد بن مسلمهؓ نه روايت دے چې حضوراقدسﷺ

ارشاد اوفرمایلو:

"انها ستكون فتنة وفرقة واختلاف۔ فاذا كان كذالك فأت بسيفك أُحُدا فاضربه حتى ينقطع۔ ثم اجلس فى بيتك حتى تأتيك يد خاطئة او منية قاضية"۔

(سنن ابن ماجه، كتاب الفتن، باب التثبت فى الفتنة، حديث:۳۹۶۲)

ترجمه: څه فتنې به راشي، او تفرقه او اختلاف به وي۔ هرکله چې داسې وي نو خپلې تورې د احد (غر) حواله یوسئ بس ویوهي (یعنې زمکې له ئې راوا چوئې) ترڅو پورې چې هغه ماتې شي، بیاپه خپل کور کېنې کېنې ترڅو پورې یا خو به ستاسو خواته یو خطاکار لاس راشي او یا به مرګ راشي اوستاسو کار به پوره کړي۔

(۱۵) حضرت حذیفه بن یمانؓ نه روایت دے چې حضورعلیه السلام ارشاد او فرمایلو:

"دعاة على ابواب جهنم۔ من اجابهم اليها قذفوه فيها، قلت: يارسول الله صفهم لنا۔ قال: هم من جلدتنا، ويتكلمون بالسنتنا، قلت: فما تامرنى ان ادركنى ذالك؟ قال: تلزم جماعة المسلمين وامامهم۔ قلت: فان لم يكن لهم جماعة ولاامام، قال: فاعتزل تلك الفرق كلها، ولو ان تعضّ باصل شجرة حتى يدركك الموت وانت على ذالك"۔ (صحيح البخارى، كتاب الفتن، حديث:۷۰۸٤)

ترجمه: څه خلق به داسې وي چې هغوی به دَ جهنم په دروازو ولاړ دي خلق ه رابلي ځا چې د هغوی خبره اومنله، هغه به هغوی جهنم

ته واچوې، ماعرض اوکړو: اے د الله رسوله مونږه د هغوی نه خبرداره کړهٔ؟ هغوی اوفرمایل: "هغوې به زمونږ پشان دَ غوښے څرمنې وی، زمونږ پشان خبری به کوی، ماواوئیل: که داسې زمانه زمونږ مخکښے ته راشی نو مونږ دَ پاره ستاسو څه حکم کوے؟ هغوی اوفرمائیل: "بس تاسو د مسلمانانو د ډلی او د هغوی دَ امام سره شَی" ماعرض اوکړو که دَ هغوی نه څوك امام وی او نه ټولګی؟ هغوی اوفرمائیل:"بیا خو تاسو دَ دې ټولو ټولګونه جدا شی، خدائے دیکی چی تاسو دَ پاره دَ یوی وُنی زیله ترهاغه پوری خوړل راشی چی ترڅو پوری پتاسو مرګ راشی۔

(۱٦) حضرت مقداد بن اسودؓ فرمائی:

"ایم الله لقد سمعت رسول الله ﷺ یقول:"ان السعید لمن جنب الفتن ان السعید لمن جنب الفتن ان السعید لمن جنب الفتن ولمن ابتلی فصبر فواها"۔

(سنن ابی داود، کتاب الفتن، حدیث:٤٢٦٣)

ترجمه:په الله قسم ما دَ حضورﷺ نه اوریدلی دی دائے ویئل:"یقینا خوش نصیبه دے هغه کس چی څوك د فتنونه بچ شو، یقینا خوش نصیبه دے هغه چی کوم د فتنو نه بچ شو۔ او کوم سړے چی (د چا د طرفه په ظلم کښے) آخته شو او هغه صبر و کړو، د هغه خو اهو بحث مه کوه هغه خو بختور دے۔

(۱۷) حضرت ام مالك بهزیهؓ فرمائی:

"ذکر رسول اللهﷺ فتنة فقربها قلت یارسول الله من خیر

الناس فیها۔قال: ”رجل فی ماشیته یؤدی حقها ویعبد ربه ورجل اخذ براس فرسه یخیف العدو ویخوفونه“۔

(رواه الترمذی فی ابواب الفتن، باب ماجاء کیف یکون الرجل فی الفتنة، حدیث:۲۱۷۷، وقال هذا حدیث حسن غریب)

ترجمه: رسول الله ﷺ دَ یوے فتنے ذکر اوفرمایلو او وئے ویل: چی هغه نزدی راروانه ده، ماعرض او کړو، اے دَ الله رسوله چی په دې فتنه کښے به دَ ټولونه غوره کس څوك وی؟ هغوی اویل چی هغه کس چی کوم د خپل کوروالو سره اُوسیګی(یعنی دَ جنګ نه جدا) او دَ هغوی حق ادا کوی او دَ خپل پروردګار عبادت کوی او هغه کس چی د خپلو آسُونُو سرئے نیولے وی او دښمن یره وې، او هغه دِے یره وې(یعنی په مسلمانانو دَ تفریق اچولو د پاره دَ غیرمسلمو سره په جهاد کښے مشغوله وی۔

(۱۸) حضرت سعید بن زید اشهلیؓ فرمائی چی دَ نجران نه یوه تُوره د حضوراقدس ﷺ لره د هدئیے په طور راوړلے شوه، هغوی هاغه تُوره حضرت محمد بن مسلمةؓ ته ورکړه۔ او هغوی تهٔ دا هدایت اوفرمائیلو:

”جاهد بهذا فی سبیل الله۔ فاذا اختلفت اعناق الناس فاضرب به الحجر ثم ادخل بیتك فکن حلسا ملقی حتی تاتیك ید خاطئة او منیة قاضیة“۔

(رواه الطبرانی فی الکبیر والاوسط ورجال الکبیر ثقات (مجمع الزوائد، کتاب الفتن، باب ما یفعل فی الفتن، حدیث:۱۲۳۲۸)

ترجمه: په دې تُورې سره د الله په لاره کښے جهاد کوه بیا کله چی

دَ خلقو په ستهونو کښې اختلاف پیدا شي نو داېوې گټې له راواچوه،
او (بې حرکته) یو پروت ټاټ جوړ شه تردې پورې چې ستا خوا ته یو
خطاکار لاس راشي(چې هغه به تا په ظالمانه طریقې سره قتل کړي)
یا تالره مرگ راشي چې ستا فیصله او کړي۔

او دا واقعه د حضرت ابن عباسؓ نه هم په دی الفاظوؓ سره روایت
شوې ده:

"ان النبیﷺ اعطی محمد بن مسلمة سیفا فقال: "قاتل المشرکین
ماقوتلوا فاذا رأیت سیفین اختلفا بین المسلمین فاضرب حتی ینثلم واقعد
فی بیتك حتی تاتیك منیة قاضیة او ید خاطئة"۔ ثم اتیت ابن عمر فحذا لی
علی مثاله عن النبی ﷺ"۔

(مجمع الزوائد، کتاب الفتن، باب مایفعل فی الفتن، حدیث:۱۲۳۲۹)

ترجمه: نبی کریمﷺ حضرت محمد بن مسلمهؓ لره یوه تُوره ور کړه
اووئې فرمائیل: کله چې د مشرکانو سره جنگ وی، ته د دې تُورې
په ذریعه د هغوی سره جنگ کوه، بیا چې ته کله اوگورې چې دَ
مسلمانانو به مینځ کښې دوه توری د یو بل سره چلیگی نوته دا توره
هم او وهه، تردی پورې چې دا پسه شي، اوبیا په خپل کور کښې
کینه ترسو پورې چې ستا مرگ راشي چې ستا فیصله او کړي، یا څه
کاخطاکار لاس تاته راورسیگی۔

(۱۹) فاتح ایران د حضرت خالد بن عرفطهؓ نه روایت دے چې
حضورﷺ هغه ته اوفرمائیل:

"یاخالد انها ستکون بعدی احداث وفتن واختلاف فان استطعت

ان تکون عبدالله المقتول لاالقاتل فافعل"۔

(رواه احمد والبزار والطبرانی وفیه علی بن زید وفیه ضعف وهو حسن الحدیث وبقیة رجاله ثقات۔ (مجمع الزوائد، کتاب الفتن، باب مایفعل فی الفتن، حدیث:١٢٣٣٤)

ترجمه: اے خالده زما نه ورستو به ډیرې حادثے وی، او فتنے به رازی، او اختلافات به وی که دا کولے شی نو ضرور اوکړه چی د الله مقتول بند جوړ شه قاتل مه جوړیګه۔

(۲۰) حضرت ابن عمرانؓ خپله واقعه اوروي:

"قلت لجندب انی قد بایعت هؤلاء یعنی ابن زبیر وانهم یریدون ان اخرج معهم الی الشام فقال: امسك فقلت: انهم یأبون قال: افتد بما لك فقلت: انهم یأبون الا ان اضرب معهم بالسیف فقال جندب حدثنی فلان ان رسول الله ﷺ قال: یجیئی المقتول بقاتله یوم القیامة فیقول: یارب سل هذا فیم قتلنی" قال شعبة: واحسبه قال: فیقول: "علام قتلته فیقول: قتلته علی ملك فلان" قال: فقال جندب: فاتقها"۔

(رواه احمد والطبرانی ورجاله رجال الصحیح (مجمع الزوائد، کتاب الفتن، باب فیما یکون من الفتن، حدیث:١٢٢٨٦)

ترجمه: ما حضرت جندبؓ ته اوئیل چی ما د هغه خلقونه یعنی دَ عبدالله بن زبیر نه بیعت کړے دے او هغوی غواړی چی زه دَ هغوی سره شام ته دَ جنګ د پاره لاړشم۔ حضرت جندبؓ اوفرمائیل: ته خپل مال ورکړه ځان ترینه خلاص کړه مااوئیل: هغوی خود دی نه علاوه بله خبره نه منی چی ځه د هغوی سره توره وچلوم په دی

باندی حضرت جندبؓ اوفرمائیل چی ماته فلانؒ صاحب ویلی دی
چی هغه درسول اللهﷺ نه اوریدلی دي "چی د قیامت په ورځ به
مقتوبل خپل قاتل راولی او (الله ته) به وائی یاربه ته دَ ده نه تپوس
اوکړه چی ده څه ولی قتل کړے یم؟ شعبه (د دے حدیث راوی دے)
وائی چی ځما ګمان دا دے چی تاسو هم دا فرمایلے وو۔ څی "الله
تعالیٰ به د قاتل نه تپوس اوکړی" چی تا دے په څه خبره قتل کړے
وو؟ " هغه به وائی چی ما دے دَ فلانکی کس د حکومت په خاطر
قتل کړے وو۔ دَ دی نه ورستو حضرت جندبؓ اوفرمائیل: "بس وس
دَ دی کارنه ځان ساته"۔

(۲۱) حضرت ابو امامهؓ نه روایت دے چی حضور اقدسﷺ ارشاد
فرمایلے دے:

"ان الله عزوجل لم یحل فی الفتنة شیئا حرمه قبل ذالك مابال
احدکم یأتی اخاه فیسلم علیه ثم یجیئ بعد ذالك فیقتله"۔

(رواه الطبرانی وفیه عبدالملك بن محمد الصنعانی وثقه ایوب بن سلیمان
وغیره وفیه ضعف (مجمع الزوائد، کتاب الفتن، باب حرمة دماء
المسلمین،حدیث:۱۲۳۱۱)

ترجمه: الله تعالیٰ د فتنے په زمانه کښے څه داسے شی نه دے حلال
کړے چی هغه د هغے نه مخکښے حرام کړے وو (بیا) تاسو له څه
اوشی چی په تاسو کښی یو کس دَ خپل رور ځنګ له راشی هغه ته
سلام اوکړی، بیا ورستو راشی نو هغه قتل کړي۔

# د خانه جنګۍ په وخت کښې

# دَ صحابۆؓ عمل

کله چې دَ حضرت عثمان رضی الله عنه دَ شهادت نه ورستو دَ مسلمانانون په مینځ چې دَ خانه جنګۍ فتنے راغلے۔ نو په کومو صحابوؓ چې به دَ کوم اړخ نه حق ظاهر شوو۔ نو هغوی په دیانت داری، سره دَ هغه اړخ ملګرتیا کړی ده۔ خو چې کومو حضراتون دا فیصله نه شوه کولے چې حقه ډله کومه ده۔ نو هغوی دَ حضور ﷺ د دے ذکر کړلے شوو هدایاتون په رنړا کښے جدا پاتے شوو۔

حضرت دیسه بنت اهبان رحمها الله فرمائی چې:

"جآء علی بن أبی طالب الی أبی فدعاه الی الخروج معه فقال له أبی ان خلیلی وابن عمك عهد الی اذا اختلف الناس أن اتخذ سیفا من خشب فقد اتخذته فان شئت خرجت به معك قالت فترکه"۔ قال أبو عیسی وفی الباب عن محمد بن مسلمة وهذا حدیث حسن غریب لانعرفه الا من حدیث عبدالله بن عبید۔

(سنن الترمذی، کتاب الفتن، باب ماجآء فی اتخاذ سیف من خشب فی الفتنة، حدیث:۲۲۰۳)

ترجمه: حضرت علی بن ابوطالب رضی الله عنه ځما د والد صاحب خواته تشریف راوړو، او هغوی ته ئے دعوت ورکړو چې زموږ سره د جنګ دَ پاره ډِ راوځې، نو ځما والد صاحب ورته اوفرمائیل:

"ځما خلیل او ستاسو دَ تره ځوے (یعنی حضورﷺ) ماته دا وصیت کړے دے۔ چې کله په خلقو کښے اختلاف پیدا شی نو زه دَ ځان دَ پاره دَ لرګی یوه توره جوړه کړم۔ وس ماهغه توره جوړه کړی ده وس که تاسو غواړی نو زه به هغه دَ لرګی توره راواخلم او ستاسو سره به لاړشم؟ حضرت علی رضی الله عنه چې دا واوریدل نو هغه ئے پریخودو۔

کله چې حضرت علی رضی الله عنه دَ خپلو مخالفینو سره جنګیدولو نو حضرت اُسامه بن زید رضی الله عنهما هغوی نه دا پیغام لیګلئے وو۔

"لو كنت فی شدق الأسد لاحببت أن أكون معك فيه ولكن هذا أمر لم أره"۔

(صحیح البخاری، كتاب الفتن، حدیث: ۷۱۱۰)

ترجمه: که چرته تاسو دَ زمری په جامو کښې وَئ، نوبیا به هم ما دابښوښول چې زه په هغے کښے هم ستاسو سره اوسیدلے، خوترسو پورے چې دا (دَ خانه جنګی) معامله ده، دا داسے معامله ده چې زه په دے کښے (حصه اغستلو) ته خه نه وائم۔

حضرت محمد بن سیرین رحمة الله علیه فرمائی:

"لما قيل لسعد بن أبی وقاص: ألا تقاتل انك من أهل الشوری وأنت أحق بهذا الأمر من غيرك قال: لا أقاتل حتى يأتونی بسيف له عينان ولسان وشفتان يعرف المؤمن من الكافر فقد جاهدت وأنا أعرف الجهاد"۔

(رواه الطبراني ورجاله رجال الصحيح (مجمع الزوائد، کتاب الفتن، باب حرمة دماء المسلمين:۱۲۳۱۸)

ترجمه: "کله (دَ مسلمانانون په مينځ کښې دَ جنگ په موقع) چې حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه ته اوئيلے شو: "تاسو جنگ نه کوی؟ ولے چې تاسو خو دَ اهل شورىٰ نه يئ، او دَ نورو په نسبت خوتاسو په ديکښې دَ حصه اغستو زيات حقدار يئ؟ نو حضرت سعد رضی الله عنه جواب ورکړو:"زه دَ هغه وخته پورے جګړه نه کوم ترسو پورے چې دا خلق مالره داسے توره رانوړی چې دَ هغې دوه سترګے وی، يوه ژبه وی، دوه شونډے وی، چې هغه مسلمان دَ کافر نه جدا پيژنی ځکه چې ما جهاد کړے دے، او زه پيژنم چې جهاد څنګه وی؟

دَ حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما شاګرد حضرت نافع رحمة الله عليه فرمائی:

"عن ابن عمر رضی الله عنهما أتاه رجلان فی فتنة ابن الزبير فقالا ان الناس ضُيِّعو او أنت ابن عمر وصاحب النبی صلی الله عليه وسلم فما يمنعك أن تخرج؟ فقال: يمنعنی أن الله حرّم دم أخی فقالا: ألم يقل الله وقاتلوهم حتی لاتكون فتنة، فقال: قاتلنا حتی لم تكن فتنة، و كان الدين لله، وانتم تريدون أن تقاتلوا حتی تكون فتنة، ويكون الدين لغير الله"۔

(صحيح البخاری، كتاب التفسير، سورة البقرة، باب قوله تعالی: "وقاتلوهم حتی لاتكون فتنة" حديث:٤٥١٣)

ترجمه: دَ حضرت عبدالله بن زبير رضی الله تعالیٰ عنهما په زمانه کښے چه کومه فتنه وه په هغې کښے دوه کسان دَ حضرت عبدالله

بن عمر رضی الله عنه خواته راغلل، اووئے وئیل چې خلق ضائع کیګی، او تاسو دَ حضرت عمر رضی الله عنه زوئے یئی، او دَ نبی کریم ﷺ صحابی یئی۔ نوبیا تاسو د دے خبرے نه څه شے منع کړے یئی چې تاسو باهر ته اوزی (او په جګړه کښے شریک شئی؟) حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما اوفرمائیل: "زه دِ خبرے منع کړے یم چې الله تعالیٰ ځما دَ رور وینه تویول حرام کړی دی"۔ په دے خبره هغوی اوئیل: "الله تعالیٰ دا نه دی فرمائیلی: چې دَ دوی سره جنګ کوی، د دے پورے چې فتنه باقی پاتے نشی۔ حضرت ابن عمرؓ اوفرمائیل: "مونږه جنګ کړے دے، د دے پورے چې فتنه ختمه شوی ده، او دین دَ الله شوے دے، او تاسو غواړئی چې جنګ کوی، د دے پورے چې فتنه پیداشی، او دین دَ الله نه علاوه دَ بل چا شی"۔

دَ حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه په پاکه زندګی کښے دَ حجاج بن یوسف او دَ نورو حکمرانانون دور تیر شوے دے چې په هغے کښے ډیرے خانه جنګیانی شوی دی، او خلقو دَ خپلو حکمرانانون خلاف تورے راغستی دی۔خو حضرت عبدالله بن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما په هر دور کښی په خپل دے موقف باندے په سختی سره ولاړ وو۔ تردئے پورے چې دَ یزید خلاف هم هغوی په څه کاروائیی کښے حصه نه ده اغستی، بلکه خپلو فرزندانون ته ئے هم وئیلے دی چې که چاپه جنګ کښے حصه واغسته نو دَ هغه سره زما هیڅ تعلق نشته دَ هغوی دا الفاظ دی۔

"انی لا أعلم غدرا أعظم من أن یبایع رجل علی بیع الله ورسوله ثم ینصب له القتال وانی لا اعلم أحدا منکم خلعه

ولا بایع فی هذا الأمر الا کانت الفیصل بینی وبینه"۔

(صحیح البخاری، کتاب الفتن، حدیث:۷۱۱۱)

ترجمه: ماته د دے نه بله غټه غداری نه ده معلومه چې کوم کس سره دَ الله او دَ رسول په نوم بیعت اوکړے شی، بیا دَ هغه خلاف جنګ شروع کړے شی، که چرې ماته ستاسو نه دَ چاپه باره کښے دا معلومه شی چې هغه دَ هغوی خلاف بغاوت کړلے دے، یا په هغه بغاوت ئے بیعت کړے دے، نو دا خبره به زما او دَ هغه په مینځ کښے(جدائی پیدا کولو دَ پاره) فیصله کونکے وی۔

حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه هم دَ خانه جنګی په زمانه کښے مدینه منوره پریخوده او نزدے په یو کلی ربزه کښے ئے استوګنه اختیار کړی وه، او دَ مرګ نه څو ورځے مخکښے ئ مدینے منورے ته تشریف راوړو۔ (صحیح البخاری، کتاب الفتن، باب التعرب فی الفتنة، حدیث:۷۰۸۷)

او حضرت حمید بن هلال رحمه الله فرمائی:

"لما هاجت الفتنة قال عمران بن حصین لحجیر بن الربیع العدوی اذهب الی قومك فلتنههم عن الفتنة قال: انی لمعموز فیهم وما أطاع قال: فأبلغهم عنی وانههم عنها۔ قال: وسمعت عمران یقسم بالله: لان أکون عبدا حبشیا أسود فی أعنتر حصبات فی رأس جبل أرعاهن حتی یدرکنی أجلی أحب الی أن أرمی أحد الصفین بسهم أخطأت أم أصبت"۔

رواه الطبرانی ورجاله رجال الصحیح (مجمع الزوائد:۱۲۳۱۷)

ترجمه: کله چې دَ خانه جنګی دَ فتنوں أوربل کړے شو نو حضرت

عمران بن حصین رضی الله عنه حجیر بن ربیع عدوی ته اوئیل چې
خپل قوم ته لاړشه او هغوی په دے فتنون کښے دَ حصه اغستو نه منع
کړه۔ نو هغه اوفرمائیل: چې هغوی خو به لاس اوچته وی۔ او څما
خبره نه مني، نو حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه اوفرمائیل:
بیا څما دَ طرف نه هغوی ته دا پیغام ورسوه۔ او هغوی منع کړه۔
حمید بن هلالؒ فرمائی چې حضرت عمران بن حصین رضی الله
تعالٰی عنه قسم اوکړو ما دا واوریدل چې: "که چرته څه یو تك تور
حبشی غلام جوړ شم او دَ یو غر په سر بیزی ساتم د دے پورے چې
ماته مرګ راشی نو ماته د دے خبرے نه زیاته خوښه ده چې زه دَ دوؤ
جنګ کولو واله ډلو په صفونو کښے په چاه دَ غشی ګزار اوکړم
که داغشے خطا شی او یا په چا اولګی"۔

دَ حضرت حذیفه بن یمان رضی الله تعالٰی عنهما په باره کښی زید
بن وهبؒ فرمائی چې خلق په هغه زمانه کښے دَ امیر نه په بعضے خبرو خفه
وو یو سړے راغلو حضرت حذیفهؓ ته ئے اوئیل: چې تاسو امربالمعروف او
نهی عن المنکر ولے نه کوی؟ حضرت حذیفهؓ پوهه شو چې د ده اشاره دئے
طرف ته ده چې دَ امیر خلاف څه بغاوت او کړے شی، په دے باندی هغوی
اوفرمائیل:

"ان الامر بالمعروف والنهی عن المنکر لحسن، ولیس من
السنة أن تشهر السلاح علی أمیرك"۔

(کشف الاستار عن مسند البزار، ج۲ص ۲۵۱، حدیث: ۱۶۳۳، ومجمع
الزوائدج۵ص۲۲٤، حدیث:۹۱۳٤ وفیه حبیب بن خالد وثقه ابن حبان
وقال أبو حاتم: لیس بالقوی)

ترجمه: امر بالمعروف او نهي عن المنکر (یعنی دَ نیکی دعوت ورکول او دَ بدئی نه منع کول) بیشکهٔ ښه خبره ده، خو دا سنت نه دی چې ته په خپل امیر پسے توره راواخله او په هغه لاس اوچت کړی۔

د دے احادیثو له کبله دَ سلف صالحین نه نقل کړے شوی دی چې هغوی دَ بدتر نه بدتر حکمرانانو په مقابله کښے هم دَ اسلحے دَ بغاوت نه لرے والے اختیار کړے وو۔ دَ حضرت امام بن حنبل رحمة الله علیه په زمانه کښے معتزله په حکومت باندے مسلط کړے شوے وو۔ او کوم خلقو د ظلم او زبردستی ښکار جوړیدل۔ پخپله امام احمد بن حنبل رحمة الله علیه ئے اته ویشت(۲۸) میاشتے په جیل خانه کښے بندیوان کړے وو۔ او په دے دوران کښے ئے هغه دَ مودو پورے بیمار وو ددے وجے بالکل د گمراها او دَ باطل عقیدو د رواج دَ پاره په عوامو باندے دَ ظلم و ستم بازار گرم وو۔ نو ځکه دَ بغداد ډیر علماء دَ حضرت امام احمد بن حنبلؒ په خدمت کښے حاضر شوو، او دا خبره ئے مخکښے کړه چې وس خبره دَ حدنه وتلی ده، د دی وجے دَ موجوده حکومت خلاف بغاوت کول پکار دی، حضرت امام احمد بن حنبلؒ دَ هغه وخت دَ حاکم عقیدے سراسر گمراهی بلکه کفر ته نژدے گنړله، او په داسے عقیدو لرونکو امیر پسے مونځونه ئے دوباره کول خو دا خبره ئے قبوله نه کړه او خانه جنگی ئے خوښه نه کړه، حافظ شمس الدین ذهبی رحمة الله دا واقعه په دے الفاظو بیا نوی۔

"قال حنبل: لم یزل أبو عبدالله بعد ان برء من الضرب یحضرالجمعة والجماعة ویحدث ویفتی حتی مات المعتصم و ولی ابنه الواثق فأظهر ماأظهر من المحنة والمیل

الی احمد بن ابی داود وأصحابه۔ فلما اشتد الامر علی اهل بغداد وأظهرت القضاة المحنة بخلق القرآن وفرق بین فضل الانماطی وبین امرأته وبین أبی صالح وبین امرأته کان أبو عبدالله یشهد الجمعة ویعید الصلاة اذا رجع ویقول: تؤتی الجمعة لفضلها والصلاة تعاد خلف من قال بهذه المقالة۔ وجاء نفر الی أبی عبدالله وقالوا: هذا الامر قد فشا وتفاقم ونحن نخافه علی أکثر من هذا وذکروا ابن أبی داود وأنه علی أن یأمر المعلمین بتعلیم الصبیان فی المکاتب: القرآن کذا وکذا فنحن لا نرضی بامارته فمنعهم من ذالك وناظرهم"۔(سیرأعلام النبلاء ج۱۱ ص۲۶۳، ترجمة الامام احمد بن حنبل رحمه الله تعالی، ط: مؤسسة الرسالة)

ترجمه: (د امام احمدؒ دَ تره زوے) حضرت حنبل رحمة الله علیه فرمائی: چې امام احمدؒ چې د کوړو وهلونه زخمونه جوړ شو نو دَ هغې نه ورستو به دَ جمعې او جماعت مانځه ته تلو، حدیث به ئې لوستلو او فتوے به ئې ورکولے د دے پورے چې معتصم مړشو، او د هغه زوے واثق حکمران جوړ شو، نو هغه صف (دَ معتزله دَ سردار) دَ احمد بن ابی داود دَ هغه ملګرو طرف ته میدان ظاهر کړو۔ او تورئے دَ تشدد نشانه جوړ کړل، کله چې معامله ډیره سخته شوه او قاضیانوهم (دَ اهل سنت والجماعت خلاف) دَ قرآن په مسئلون کښې دَ تشدد فیصلے شروع کړے او فضل انماطی او ابوصالح (ته ئې کفار اوئیل) ښځې ئې دَ هغوی نه جدا کړے، نو امام احمد رحمة الله علیه دَ جمعې دَ فضیلت د وجې نه په جمعه کښې خو به شاملیدو،

خود دے گمراها عقیدو لرنکو خلقو ورستو چې کوم منځونه ئې
کول هغه به ئې دوباره راګرځول، په داسې موقع کښې څه خلق دَ
امام احمدؒ خواه ته راغلل، اوونئې وئیل چې دا ګمراهی وس ډیره
خوره شوی ده، او دا معامله د حد نه وتلې ده، او مونږ ته شك دے
چې حکومت به د دے نه هم زیاته ګمراهی خوره کړی، هغوی داهم
اوئیل چې ابن ابی داود دا خبره خوره کړے ده چې هغه به ټولو
استاذانو ته دا حکم ورکوی چې هغه په مکاتب کښې ماشومانو ته دَ
قرآن شریف په باره کښې د داسې (ګمراه) عقیدو تعلیم ورکوی، د
دے وجے مونږ د دے موجوده حکومت په حکمرانی باندے راضی نه
یؤ، او مسلم بغاوت کول ئې غوښتل) خو حضرت امام احمد بن
حنبل رحمة الله علیه هغوی منع کړل، او دَ هغوی سره ئې په دے
خبره کښې مناظره وکړه، دا واقعه قاضی ابویعلیٰ رحمة الله علیه په
دے الفاظو بیان فرمائی:

"قال حنبل فی ولایة الواثق: اجتمع فقهاء بغداد الی أبی
عبدالله (یعنی امام احمدؒ) وقالوا هذا أمر قد تفاقم وفشا۔
یعنون اظهار الخلق القرآن۔ نشاورك فی أنالسنا نرضی
بامارته ولا سلطانه فقال: "علیکم بالنکرة بقلوبکم،
ولاتخلعوا یدا من طاعة، ولا تشقوا عصا المسلمین"۔

(الاحکام السلطانیة لأبی یعلی ص۲۱)

ترجمه: حنبل رحمة الله علیه فرمائی چې د بغداد فقهاء دَ امام احمدؒ
خواه ته ټول په جمع راغلل او وئی فرمائیل چې دا معامله یعنی دخلق
قرآن په اظهار باندے مجبورول خوره شوه او دَ حدنه خبره واوړیده۔
مونږ ستا سو سره دَ مشورے د پاره راغلی یو، چې مونږ د دے خلیفه

په حکومت او دده په امیری راضی نه یؤ۔ په دی خبره باندے امام احمد رحمة الله علیه اوفرمائیل: "چې ستاسو په زړونو کښی چې څه خبره ده تاسو هغه غلطه او ګڼړی تاسو دَ حکومت تسلیمولو نه لاس مه راکاګیئ، او په مسلمانانون کښې اختلاف مه پیدا کوئی۔

حافظ ابن حجر رحمة الله علیه دَ حضرت حسن بن صالح رحمة الله علیه تذکره کوی او دائے ئیکلی دی:

(الحسن بن صالح) كان يرى السيف يعنى كان يرى الخروج بالسيف على ائمة الجور وهذا مذهب للسلف قديم لكن استقر الامر على ترك ذالك لما رأوه قد افضى الى أشد منه ففى وقعة الحرة ووقعة ابن الاشعث وغيرهما عظمة لمن تدبر۔۔۔والحسن مع ذلك لم يخرج على أحد وأما ترك الجمعة ففى جملة رأية ذلك أن لا يصلى خلف فاسق ولا يصحح ولاية الامام الفاسق فهذا ما يعتذر به عن الحسن وان كان الصواب خلافه فهو امام مجتهد۔

(تهذیب التهذیب ج۲ ص۲۸۸، ترجمة الحسن بن صالح)

ترجمه: حسن بن صالح رحمة الله علیه دَ ظالم حکمران خلاف مسلح بغاوت ته جائز وئیل: او دا دَ سلف صالحین زوړ مذهب دے۔

خو ورستو دَ اُمّت په رائے باندے دا قرار جوړ شو چې داسے نه دی کول پکار ولے چې د امت علماؤ د دے خبرے مشاهده کړے ده، چې مسلح بغاوت دَ مخکښې نه زیات دَ خرابو حالاتون سبب دے، څکه دَ حرّه په واقعاتون او ابن الاشعث په واقعاتون کښې د غور کولو او دَ

عبرت حاصلولو یو غټ سبق موجود دے۔ او حضرت حسن صالحؒ هم د دے (جائز کنټرلو) باوجود دَ چاه خلاف بغاوت نه دے کړے۔

او دا حافظ ابن حجر رحمة الله علیه دَ صحیح بخاری په شرح کښے عبدالله بن عباس رضی الله عنه د دے حدیث تشریح کوی کومه چې "دَ بدکار حکمرانانو سره طرز عمل" په عنوان دَ لاندے حدیث نمبره په طور تیره شوه، هغوی لیکئی:

"قال ابن بطال: فی الحدیث حجة فی ترك الخروج علی السلطان ولو جار، وقد أجمع الفقهاء علی وجوب طاعة السلطان المتغلب والجهاد معه وأن طاعته خیر من الخروج علیه لما فی ذلك من حقن الدماء وتسکین الدهماء، وحجتهم هذا الخبر وغیره مما یساعده، ولم یستثنوا من ذلك الا اذا وقع من السلطان الکفر الصریح فلاتجوز طاعته فی ذلك، بل تجب مجاهدته لمن قدر علیها"۔

ترجمه: علامه ابن بطالؒ فرمائی چې په دے حدیث کښے د دے خبرے دلیل دے چې بادشاه که څومره هم ظالم ولے نه وی، دهغه خلاف مسلح بغاوت نه دی کول پکار، او دَ فقهاؤ په دے خبره اجماع ده، چې کوم بادشاه چې په جبر سره حاکم جوړ شوے وی په جائز کاروتو کښے (یعنی پخپله ئے ځان حاکم جوړ کړے وی) دَ هغه اطاعت هم واجب دے، او د هغه سره یو ځائے جهاد هم کول پکار دی، او دَ هغه اطاعت کول دَ هغه خلاف دَ بغاوت نه زیات بهتر دی، ولے چې په دی طریقه کښے دَ وینے تویدلو او دَ مصیبت نه دَ

خلاصیدو ذریعه ده، او دَ فقهاء کرامون دلیل دا حدیث دے، او دَ دے
نه علاوه هغه حدیثونه کوم چې د دے تائید کوی، او فقهاء کرامون د
دے حکم نه څه صورت هم دَ دے نه علاوه نه دے ویستلے چې دَ
بادشاه کفر واضح صادر وی، نو په هغې کښې دَ هغه اطاعت جائز نه
دے، بلکه چې څوك قدرت لری، په هغه جهاد فرض دے۔

بعض فقهاء کرامون فرمائیلی دی چې که څه خلق دَ ظالم حکمران
دَ ظلم خلاف راوچت شی نو که چرته ظلم واضح وی نو دَ هغوی مرسته
دِ او کړے شی او که چرته ظلم واضح نه وی نو نه دَ بادشاه مرسته دِ او کړے
شی او نه دَ هغه خلقو۔

(ردالمحتار، باب البغاة، ج٤ ص٢٦٤،٢٦٥)

نو د دے نه مراد دَ حکومت دَ تخت الټا کولو دَ پاره بغاوت نه دے
بلکه دَ ظلم دفاع کول دی۔ (امداد الفتاویٰ ج٥ ص١٢١)

حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علی تهانوی قدس سره په
امداد الفتاویٰ کښے په دے موضوع تفصیلی بحث کړے دے۔ چې په کومو
صورتونون کښے دَ حکومت خلاف بغاوت جائز دے او په کومو
صورتونون کښے دَ حکومت خلاف بغاوت ناجائز دے، او د دے خلاصه
ماپه تکمله فتح الملهم کښے بیان کړے ده، خود دے حاصل دا هم دے چې
دَ کفر بواح (یعني واضحه کفر) په کومو صورتونون کښی چې دَ مسلح
بغاوت او کار وایئ اجازت دے، په هغې کښے دا شرط هم دے۔ چې د دے
خبرے ویره نه وی چې د دے بغاوت په نتیجه کښی مسلمانان دَ مخکښے
نه په برتر صورتحال کښی شی (دَ تفصیل دَ پاره اوګورئی امداد الفتاویٰ

ج ۵ ص ۱۲۲، کتاب ما یتعلق بالحدیث، بعنوان "جزل الکلام فی عزل الامام)

او دا ښرګند خو مسلم دے هم چې ټول خلق دَ یو داسے کس په سربراهی (مشرتیا) باندے متفق شی چې هغه واقعة په شرعی اعتبار سره دَ حکمرانی قابله نه وی۔

دَ تاریخ دَ مطالعے نه دا خبره ښکاره ګیږی۔ چې په تیره زمانه کښے کله چې هم دَ چاه صاحب اقتدار خلاف مسلح بغاوت شوے دے، خلاصه دا چې د دے نتیجه دَ مسلمانانو په حق کښے ښه نه ده شوی، خو امت د دے نه زیات دَ خرابو حالاتو ښکار جوړ شوے دے، ځکه علامه ابن تیمیه رحمة الله علیه لیکلی دی:

"وقل من خرج علی امام ذی سلطان الا کان ماتولد علی فعله من الشر أعظم مما تولد من الخیر، کالذین خرجوا علی یزید بالمدینة، وکابن الأشعث الذی خرج علی عبدالملك بالعراق، وکابن المهلب الذی خرج علی أبیه بخراسان، وکأبی مسلم صاحب الدعوة الذی خرج علیهم بخراسان ایضا، وکالذین خرجوا علی المنصور بالمدینة والبصرة وأمثال هؤلاء، وغایة هؤلاء اما أن یُغلَبوا واما أن یَغلبوا، ثم یزول ملکهم فلایکون لهم عاقبة، فان عبدالله بن علی وأبا مسلم قتلا خلقا کثیرا، وکلاهما قتله أبو جعفر المنصور، وأما أهل الحرّة وابن الأشعث وابن المهلب، فهُزموا وهُزم أصحابهم، فلا أقاموا دینا ولا أبقوا دنیا، والله تعالیٰ لایأمر بأمر لایحصل به صلاح الدین، ولا صلاح الدنیا، وان کان

فاعل ذلك من عباد الله المتقين ومن أهل الجنة، و كذلك أهل الحرّة كان فيهم من أهل العلم والدين خلق، و كذلك أصحاب ابن الأشعث۔۔۔ و كان الحسن البصرى يقول: ان الحجّاج عذاب الله، فلاتدفعوا عذاب الله بأيديكم، ولكن عليكم بالاستكانة والتضرع، فان الله تعالٰى يقول: "وَلَقَد أَخَذنَاهُم بِالعَذَابِ فَمَا استكَانُوا لِرَبِّهِم وَمَا يَتَضَرَّعُون" ولهذا استقر أمر هل السنة على ترك القتال فى الفتنة للأحاديث الصحيحة الثابتة عن النبى ﷺ وصاروا يذكرون هذا فى عقائدهم، ويأمرون بالصبر على جِور الائمة"۔

(منهاج السنة النبوية، ج٢ ص٣١٣ و ٣١٤، طبع المكتبة الحديثة، الرياض)

ترجمه:چاه چې هم دَ چاه صاحب اقتدار (مسلمان) حکمران خلاف بغاوت کړے دے دَ دی په نتیجه کښی داسی شر پیدا شوے دے۔ چې هغه دَ خیر پیدا کیدو په مقابله کښی زیات دے۔ د مثال په طور باندے په مدینه منوره کښی چې کومو خلقو دَ بزید خلاف ورزی وکړه۔ او دغه شان ابن اشعث چاه چې په عراق کښی دَ عبدالملك خلاف بغاوت وکړو او دا رنګے ابن المهلب چې په خراسان کښی ئے دَ خپل والد صاحب خلاف بغاوت وکړو او دغه شان ابومسلم ده هم په خراسان کښی دَ حکمرانانون خلاف بغاوت وکړو۔ او په دے ترتیب باندے هغه خلق چې هغوی په مدینه منوره او بصره کښی دَ منصور خلاف بغاوت وکړو۔ او دغه مثال دَ نورو خلقوهم دے او د دے خلقو انجام دا وی چې یا خو دا خلق مغلوب او

ناکامه شي او یا که غالبه شي خو د دے خلقو حکومت دَ څه لګ وخته پورے وی۔ او بیا ختم شي۔ او اخری انجام د دوی په حق کښې نه وی۔ ځکه عبدالله بن علی او ابو مسلم ډیر خلق قتل کړے وو۔ او بیا دا دواړه دَ ابوجعفر منصور دَ لاسه قتل کړے شوو۔ او اهل حرّة ابن اشعث او ابن مهلب دوی او دَ دوی ملګرو شکست وخوړو۔ دی د پار دَ هغوی دین نه په دنیا باقی پاتی شو۔ او دَ الله تعالیٰ د داسے کار حکم نه فرمائی۔ چې هغے کښې نه د دین برتری وی او نه دنیا اګر که د دے کار کولو والا دَ الله دَ پرهیزګاره بندګانو او اهل جنت والا نه ولے نه وی۔ او دغه دَ اصحاب حرّة حال دے چې په دوی کښې لوئے لوئے عالم دین او نیکان خلق موجود وو۔۔۔ او حضرت بصری رحمة الله علیه به فرمائیل چې حجاج بن یوسف د الله عذاب دے، د دے وجے نه دَ الله دَ عذاب تاسو پخپلو لاسونو دَ منع کولو کوشش مه کوی، خو تاسو لره پکار دی چې دَ الله تعالیٰ مخکښے ته عاجزی او فریاد او کړی، ځکه چې الله فرمائی:

"وَلَقَد أَخَذنَاهُم بِالعَذَابِ فَمَا استكَانُوا لِرَبِّهِم وَمَا يَتَضَرَّعُونَ"۔ (سورة المومنون: ٧٦)

ترجمه: یعنی واقعه دا ده چې او مونږه اخته کړی وو دوی په عذاب کښې نو دوی عاجزی نه وه کړی رب په ظاهره او نه ووروی تیټ شوی دَ زړه نه۔

په دے وجه دَ اهل سنت مسلك دا دے چې دَ فتنے په وخت کښې دِ قتال اونه کړے شي، ولے چې صحیح احادیث کوم چې دَ نبی کریمﷺ نه

ثابت دی، دَ هغے هم دا تقاضه ده او اهل سنت دا خبره په خپلو عقیدو ن کښی ذکر کوی، او دَ حکمرانانو په ظلم باندے دَ صبر کولو او دَ مسلح مقابله نه کولو تلقین ورکوی"۔

علامه ابن تیمیه رحمة الله علیه په دے موضوع باندے په تفصیل سره خبرے کوی او مخکښے فرمائی:

"وهذا كله مما يبين أن ما أمر به النبی ﷺ من الصبر علی جور الائمة وترك قتلاهم والخروج عليهم هو أصلح الأمور للعباد فی المعاش والمعاد وأن من خالف ذلك متعمدا أو مخطئا لم يحصل بفعله صلاح بل فساد ولهذا أثنی النبی ﷺ علی الحسن بقوله ان ابنی هذا سيد وسيصلح الله به بين فئتين عظيمتين من المسلمين"۔(منهاج السنة النبوية، ج۲ص۳۱٤)

ترجمه: د دے ټولو واقعاتو نه دا خبره سرګندیګی چې نبی کریم ﷺ دَ ظالم حکمرانانو په ظلم باندے دَ صبر کولو او دَ مسلح مقابلے دَ نه کولو چې کوم حکم ورکړے دے۔ هغه دَ خلقو دَ پاره دَ دنیا او آخرت په لحاظ سره زیاته غوره ده او چاه چې په قصد سره یا په غلطی سره د دے خلاف کړے دے د هغه د دے کارنه څه اصلاح نه ده شوے خو نقصان ترے نه شوے دے۔ او د دے وجے نبی کریم ﷺ دَ حضرت حسن رضی الله عنه تعریف کړے دے "چې څما دا بچے سردار دے۔ او الله تعالیٰ به د ده دَ وجے دَ مسلمانانو دَ وه لویو ډلو په مینځ کښی صلح کوی" مخکښے علامه ابن تیمیه رحمة الله علیه فرمائی:

"وان كان الفاعلون لذلك يرون أن مقصودهم الأمر بالمعروف والنهي عن المنكر كالذين خرجوا بالحرة وبدير الجماجم على يزيد والحجاج وغيرهما، لكن اذا لم يزل المنكر الا بما هو أنكر منه صار ازالته على هذا الوجه منكرا واذا لم يحصل المعروف الا بمنكر مفسدته أعظم من مصلحة ذلك المعروف كان تحصيل ذلك المعروف على هذا الوجه منكرا، وبهذا الوجه صارت الخوارج تستحل السيف على أهل القبلة حتى قاتلت عليا وغيره من المسلمين"۔ (منهاج السنة النبوية، ج۲ ص۳۱٦و۳۱۷)

ترجمه: كه چرته دَ مسلح بغاوت كونكو دا خيال ولى نه وى چې دَ هغوى مقصد دَ نيكى حكم كول او دَ بدى نه منع كول وى۔ مثلا كوم خلق چې حرّه او ديرالجماجم كښې دَ يزيد او حجاج بن يوسف وغيره خلاف راوتلى وو۔ دَ هغوى مقصد هم داوو، خو كه د يوے غلطى لرے كول يو داسے شئى نه بغير نه كيګى چې هغه شى دَ هغے نه زيات غلط وى نو بيا دغه غلطى ختمول پخپله غلطى ده، او كه يوه نيكى د يوى داسې بدئ نه بغير نه حاصليګى چې دَ هغے نقصانات دَ نيكى دَ مصالح نه زيات وى نو هغه نيكى په هغه طريقه سره اختيارول هم بدى ده۔

- خوارجون هم په دغه طريقه باندے دَ اهل قبلے خلاف توره اوچتول حلال او ګنړل، تردے پورے چې دَ حضرت على رضى الله تعالىٰ عنه او دَ نورو مسلمانانون خلاف ئے مسلح جنګ او كړو۔

واٰخر دعوانا أن الحمدلله رب العالمين۔

# قتل اور خانہ جنگی

## کے بارے میں

## آنحضرت صلی اللہ علیہ وآلہ سلم کے ارشادات

مفتی تقی عثمانی

مکتبہ معارف القرآن کراچی ۱۴
(Quranic Studies Publishers)

# The Sanctity of Human Life in The Qur'ān and Sunnah

By
Mufti Muhammad Taqi Usmani

Translated By
Moulana Shakir Jakhura

Maktaba Ma'ariful Quran
(Quranic Studies Publishers)
Karachi - Pakistan

# تصانیف : حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب مدظلہم

## قرآن - علوم قرآن

- ☆ آسان ترجمہ قرآن (اردو ترجمہ۔ تشریحات۔ حواشی)
- ☆ مقدمہ معارف القرآن
- ☆ علوم القرآن
- ☆ The Noble Quran 1 & 2 Vols.
- ☆ Ma'ariful Quran (8 Vols.)
- ☆ Quranic Science

## حدیث علوم حدیث

- ☆ انعام الباری شرح صحیح بخاری
- ☆ حضور ﷺ نے فرمایا (انتخاب احادیث)
- ☆ تکملة فتح الملهم (شرح صحیح مسلم ۶ جلد عربی)
- ☆ درس ترمذی (۳ جلد)
- ☆ حجیت حدیث
- ☆ تقریر ترمذی (۲ جلد)
- ☆ Sayings of Muhammad ﷺ
- ☆ The Authority of Sunnah

## فقہ۔ علوم فقہ۔ فتاویٰ

- ☆ فتاویٰ عثمانی (۳ جلد)
- ☆ فقہی مقالات (کامل سیٹ ۴ جلد)
- ☆ عدالتی فیصلے (کامل سیٹ)
- ☆ احکام اعتکاف
- ☆ ضبط ولادت
- ☆ بحوث في قضايا فقهية معاصرة (عربی)
- ☆ احكام الذبائح (عربی)
- ☆ The Rules of I'tikaf
- ☆ Contemporary Fatawa
- ☆ The Rulings of Slaughtered Animals

## معیشت۔ تجارت۔ اسلامی بینکنگ

- ☆ اسلام اور جدید معیشت و تجارت
- ☆ غیر سودی بینکاری فقہی مسائل کی تحقیق اور اشکالات کا جائزہ
- ☆ اسلام اور جدید معاشی مسائل (کامل سیٹ ۸ جلد)
- ☆ موجودہ عالمی معاشی بحران اور اسلامی تعلیمات
- ☆ سود پر تاریخی فیصلہ
- ☆ ہمارا معاشی نظام
- ☆ اسلامی بینکاری کی بنیادیں
- ☆ اسلامی بینکاری تاریخ و پس منظر
- ☆ التجارة والاقتصاد المعاصر في ضوء الإسلام (عربی)
- ☆ An Introduction to Islamic Finance
- ☆ The Historic Judgement on Interest
- ☆ Present Financial Crisis Causes & Remedies

## اسلام اور عہد حاضر

- ☆ ہمارا تعلیمی نظام
- ☆ دینی مدارس کا نصاب و نظام
- ☆ اسلام اور جدت پسندی
- ☆ نفاذ شریعت اور اس کے مسائل
- ☆ موجودہ پر آشوب دور میں علماء کی ذمہ داریاں
- ☆ اسلام اور سیاست حاضرہ
- ☆ ہمارے عائلی مسائل
- ☆ ملکیت زمین اور اس کی تحدید
- ☆ حکیم الامت کے سیاسی افکار
- ☆ اسلام اور سیاسی نظریات
- ☆ نظرة عابرة حول التعليم الإسلامي (عربی)
- ☆ Islam and Modernism

## ردّ عیسائیت / قادیانیت

- ☆ بائبل سے قرآن تک (۳ جلدیں)
- ☆ بائبل کیا ہے؟
- ☆ قادیانی فتنہ اور ملت اسلامیہ کا موقف
- ☆ عیسائیت کیا ہے؟
- ☆ ما هي النصرانية (عربی)
- ☆ What is Christianity?
- ☆ Qadianism on Trial

## اسلامیات (متفرق)

- ☆ حضرت معاویہؓ اور تاریخی حقائق
- ☆ تراشے
- ☆ تبصرے
- ☆ تقلید کی شرعی حیثیت
- ☆ The Legal Status of Following a Madhab

## سفرنامے

- ☆ جہان دیدہ (بیس ملکوں کا سفرنامہ)
- ☆ دنیا مرے آگے (سفرنامہ)
- ☆ سفر در سفر (سفرنامہ)
- ☆ الیاپان میں چند روز
- ☆ اندلس میں چند روز

## اصلاح معاشرہ

- ☆ اصلاحی خطبات (کامل سیٹ)
- ☆ اصلاحی مجالس (کامل سیٹ)
- ☆ فرد کی اصلاح
- ☆ پُر نور دعائیں
- ☆ نمازیں سنت کے مطابق پڑھیے
- ☆ ارشادات اکابر
- ☆ حدود آرڈیننس ایک علمی جائزہ
- ☆ خاندانی اختلافات کے اسباب اور ان کا حل
- ☆ معاشرتی حقوق و فرائض
- ☆ قتل اور خانہ جنگی کے بارے میں آنحضرت ﷺ کے ارشادات
- ☆ اصلاحی مواعظ (کامل سیٹ)
- ☆ اصلاح معاشرہ
- ☆ آسان نیکیاں
- ☆ نشری تقریریں
- ☆ ذکر و فکر
- ☆ مواعظ عثمانی
- ☆ حقوق العباد و معاملات
- ☆ خاندانی حقوق و فرائض
- ☆ اپنے گھروں کو بچائیے
- ☆ اسلام اور ہماری زندگی
- ☆ The Language of Friday Khutbah
- ☆ Easy Good Deeds
- ☆ Perform Salah Correctly
- ☆ Discourses on Islamic Way of Life (10 Vols.)
- ☆ The Sanctity of Human Life in the Quran & Sunnah
- ☆ Radiant Prayers
- ☆ Spiritual Discourses
- ☆ Islamic Months

## سوانح۔ تذکرے

- ☆ میرے والد میرے شیخ
- ☆ مآثر حضرت عارفیؒ
- ☆ اکابر دیوبند کیا تھے؟
- ☆ نقوش رفتگاں
- ☆ تذکرے
- ☆ البلاغ عارفیؒ نمبر
- ☆ البلاغ مفتی اعظمؒ نمبر